# کندهار

د کندهار اطلاعاتو او فرهنګ ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه

۱۳۹۷ کال، دوهمه ګڼه
(جوزا - سرطان)



د میرویس خان نیکه مقبره د ترمیم په حال کې.

# کندهار

علمي، تاریخي، ادبي او ټولنیزه مجله

د امتیاز څښتن: د کندهار اطلاعات او فرهنګ ریاست

مؤسس
**محمدولي زلمی**

مسئول مدیر
**محمدنبي سلطاني**

کتنپلاوي
**ډاکټر عبدالرازق پالوال**
**استاد محمد معصوم هوتک**
**پوهنمل شېرشاه رشاد**
**استاد حیات الله رفیقي**
**محمد یار یار**
**محمد ابراهیم سپېڅلی**

**در پیمه دوره**
**د ۱۳۹۷ش کال دوهمه ګڼه ( غبرګولی - چنګاښ)**
**پرله پسې ۸۷ یمه ګڼه**

**څو ضروري یادوني**

- کندهار مجله اسلامي او ملي ګټو ته زیان رسوونکي لیکني نه خپروي.
- کندهار مجله د مجلې د ټاکلي لیکني معیار سره سم د لیکنو په اصلاح کې د لاسوهني حق لري.
- را استول سوي لیکني بیرته نه ورکول کیږي.
- هره لیکنه د لیکوال خپل نظر څرګندوي.

**په هیواد او له هیواده دباندي د مجلې بیې**

هیواد: ۳۰ - افغانۍ

پاکستان: ۱۰۰ - کلداري

**کلنی ګډون**

هیواد: ۱۸۰ - افغانۍ

پاکستان: ۶۰۰ - کلداري

نور هیوادونه: ۱۰۰ - امریکایي ډالره

پته
**علامه حبیبي واټ**
**اطلاعاتو او فرهنګ ریاست**
**د کندهار مجلې دفتر**

ایمیل ادرس: kandaharmagazine@gmail.com

# فهرست

## څېړنه



## شعرونه



## ترجمه



## راپورونه

د اداري يادابنت:

## د فرهنګي ارزښتونو ساتنه او پالنه

کلتور، عقايد او ارزښتونه د يوې ټولنې د وګړو د معنوي او مادي اړتياوو د پوره کولو او تسکين خورا ستره وسيله ده، چې د ښه او غوره ژوند د تېرولو لپاره موخې، اصول، قواعد او لارې چارې ورته ټاکي.

که د ټولنې (عقيده، فرهنګ او ارزښتونه) فولادي (ټينګ) نه وي ټولنه په خورا اسانۍ سره راپرېوځي، له منځه ځي، ترقي، پرمختګ او نوښت ئې ضلبېږي.

اطلاعات او فرهنګ وزارت د ټول افغانستان او اطلاعات او کلتور رياست د کندهار په کچه د افغانانو، د فرهنګ، عنعنې، دود، کلتوري ارزښتونو او ... د هويت ساتنې او پالنې درونده مسئوليت لري، نړۍ والو ته د افغاني سپېڅلي فرهنګ حقيقي انځور وړاندې کوي او تر څنګ ئې د خپلو کلتوري معيارونو، ټولنيزو ارزښتونو او عقيدوي باورونو ساتنه او پالنه کوي، نه پرېږدي، چې په هيواد او له هيواده بهر څوک تاوان ورورسوي.

کندهار اطلاعات او فرهنګ رياست دې ژمنتيا ته ژمن دئ، چې د خپلې عقيدې، فرهنګ او ارزښتونو ساتنه وکړي، د خپلو اسلافو پر نقش ولاړ سي، د خپل اولس د پوهولو لپاره شپه او ورځ کار وکړي، سيمينارونه، ورکشاپونه، غونډې، پوهنيز او ښوونيز پرګرامونه ورته جوړ کړي، ترڅو وکولای سي د اسلامي مقدساتو، فرهنګي معيارونو او ټولنيزو ارزښتونو ساتنه، پالنه او بيا جوړونه په سمه توګه وکړي.

له نېکمرغه اطلاعات او فرهنګ رياست په دې لنډ وخت کي په دې توانېدلی، چې د افغانستان د خپلواکۍ د ستوري، ملي قايد او ستر مبارز (حاجي ميرويس خان نيکه) مقبره په ښه توګه ترميم کړي، د کندهار ښار تاريخي جامع ګاني (ميرهزار او زړه جامع) د خپل اسلامي او افغاني مسئوليت له مخې بياځلي ورغوي، د سترټولواک لوی احمدشاه بابا زيارت او د خرقې شريفې په بيا جوړونه لاس پوري کړي، د کندهار موزيم د افغانستان په کچه جوړ او د اثارو د پېژندنې لپاره ئې يو کاري ټيم راوغواړي، د نارنج مانۍ کيندنو پروژه پيل کړي، د خپلو مشرانو لمانځنه وکړي، ښوونيزې غونډې جوړې کړي، د ويښتيا پروګرام په هرو دوو اونيو کي د ځوانانو د ويښتيا او ذهني ودې په موخه جوړ کړي، هره اُونۍ د کندهار لوی ادبي بهير مشاعره د کندهاري شاعرانو تر منځ جوړه کړي، د ډاکټر عبدالرازق پالوال (وګړي دوړخيان دي سړي هم لا) د ښاغلي نذير احمد تائي (د خوشحال خان خټک نوې پخوانۍ طب نامه) د نسيمې باري (د بلاسيوری) او د زينب فايض (د ښځو د مياشتني عادت په اړه شرعي او علمي تحقيق) کتابونو مخکتنه وکړي، د ډاکټر نثار احمد صمد واصفي د آثارو او افکارو د پېژندنې غونډه جوړه کړي، د کندهار له سيمييزو رسنيو د کارکوونکو څخه د ښار جرګګۍ جوړه، د راډيو ګانو د څېرنيز کيفيت د لوړولو لپاره ورکشاپونه جوړ او له هغوی څخه د نژدې ليدنه وکړي.

يادي کړنې د کندهار اطلاعات او فرهنګ رياست د خپل کلتور د ساتلو، د اسلامي مقدساتو د خوندي کولو او ... هغه ښکاره بېلګې دي، چې د سبا د روښانتيا لپاره د نن اغزنه لار پرانيزي.

الحاج فضل محمد پنهان

# تاریخ نه مسخ کیږي

(دوهمه برخه)

**لـومړی:** د دغـو سـقاوي فاشسـتانو، متعصـبه ستمانو، دپښتو ژبي او پښتني ثقافت د مخالیفینو په هکله باید وویل سي، چي ستر ټولواک، لوی فاتح، پښتون غازي لوی احمدشاه بابا ما او تاسي غوندي ساده او بېسواده سړی نه وو او پورته مو ولوستل چي دلوي احمد شاه بابا پلار او نیکه ګان د ابدالي قبیلې مشران، خانان او د هرات پاچاهان تېرسوي وه، څکه نولوي احمدشاه بابا په داسي یو محیط کي روزل سوی او تربیه سوی وو. احمد شاه بابا پوه، عالم، تاریخ پوه، سیاست پوه، ادیب، شاعر، تکړه سپه سالار، په پښتني ثقافت، کلتور او فرهنګ پوره پوه او بلد وو، د افغانستان، ایران او هندوستان تاریخونه ئې لوستلي وه. (د غلجو اودورانو) دتاریخ، ثقافت او فرهنګ سره پوره بلد وو لکه چي وایي:

ټوله یودي که غلجي دي که ابدال

ښه هغه چي ئي دزړه ښیښه صفاده

لـوي او سـتر غـازي، د پـاني پـټ د میـدان لـوی قهرمان احمد شاه بابا د هغو پښتنو، چي په هندوستان کـي ئـې پاچـاهي کـړې وي لکـه غوریـان، لودیـان او سوریان له تاریخ، کلتور او سقافت سره ئې اشنا وو، لکه خوشحال خان خټک، چي وایي:

د شېرشاه او د بهلول خبري اورم

چي په هند کي پښتانه وه پاچاهان

شېر اووه پېړۍ ئې هسي پاچاهي وه

درست جهان واړه ودوی وته حیران

لوی احمد شاه بابا په دې ښه پوهېدی که چیري پښتانه یو لوري یاخواته نه سي، لکه دګور چنجي سره خوري او په خپلو کي یو تر بله سره وژني نو د همدې عمل پر اساس لوی احمد شاه بابا په (۱۱۶۵هـ س) (۱۷۵۱ز) کال دکندهار څخه مخ دلاهور پرلوري هرکت وکی، دځینو تاریخونو په استناد د لوی احمد شاه بابا لښکر، چي د کندهار څخه د لاهور پر لوري حرکت کوي، شمېر ئې (۴۲۰۰) تنه وو، کله چي جلال آباد ته رسېږي د میا فقیرالله جلال آبادي ثم ملتاني (۱۷۵۰۰) مریدان او خلیفه ګان د لوی احمد شاه بابا له لښکر سره یوځای کیږي، چي د لوی احمد شاه بابا لښکرو شمېر ټول ټال (۶۰۰۰۰) نفرو ته رسېږي.

په (۱۱۷۰ هـ ش) کال ئې پنجاب ونیوی په (۱۱۷۴ هـ ش) او (۱۷۶۰ز) کال ئې دپاني پټ په میدان کي لسو لکو (۱۰۰۰۰۰۰) مرهټانو او هندوانو

ته، چې سکان هم پکښې وه سخته ماته ورکړه، دوه لکه ئې په جنګ کې ووژل (۲۲۵۰۰) ئې ژوندي ونیول.

په (۱۱۷۵ هـ ش) او (۱۷۶۲ ز) کال کې لاهور ته ولاړی په (دوهي) کې د سیکانو د (۲۰۰۰۰۰) لښکرو سره مخ سو، چې په دې جنګ کې (۲۵۰۰۰) سیکان ووژل سول او د (پټالي) او (سرهند) حکومت ئې امیر سنګهر ته وسپاره. وګورئ د افغانستان لنډ تاریخ ۲۸۶ مخ.

که چیري لوی احمدشاه بابا د هندوستان مشر تابه هغو ښښتنو ته، چې ده د کندهاره د ځان سره بېولي وه، هغو ته ورکړی وای او په هندوستان کې ئې پرې ایښي وای هغه خطر چې لوي افغانستان ته د درو خواوو متوجه وو، یعني د شمال د لوري د ماوراء النهر دشیبانیانو، دبخارا استرا خالي دازبکانو د خیدي کورنۍ، د ختیځ د لوري د هندوستان د مغولي امپراتورۍ او د برتانوي استعمار ګرو، چې په (۱۶۰۰ ز) کال کې د ایسټ انډیا کمپنۍ جوړه سوه په (۱۶۰۸ ز) کال د ایسټ انډیا کمپنۍ له لوري (کپیټن هاکنز) د مغولي پاچا دربارته ورغلی مغولي پاچا جهان ګیر له هغه سره ښه چلند وکی، په هند کې ئې انګریزانو ته د اوسېدلو اجازه ورکړه. وګورئ ستر او اتل مجاهد غازي احمد شاه ابدالي ۱۴۴ مخ.

دغو جنابانو ته باید وویل سي چې د پاني پت ترماتي «۱۵۲» کاله مخکې انګریزان هندوستان ته راغلي وه، یعني د مغولي پاچا جهان ګیر په وخت کې برتانوي استعمار ګر هندوستان ته راغلي وه.

بل داچې انګریزان داسي یو کوچنی او خوار ځواکه هیواد نه وو، چې مغولي بې اتفاقه او ګډه وډه اداره دي وتوانېږي، چې د برتانوي اشغالګر فوج جلو ګري دي وکړي، که چیري موږ د مغولو تاریخ ته ځېر سو او په دقت ئې مطالعه کړو، کوم وخت چې نورالدین (جهان ګیر) په (۱۰۳۷ هـ ش) کال کې وفات سو او پر ځای ئې زوی شهزاده خرم (شاه جهان) پاچاسو، نو پر همدې وخت د مغولو په امپراتورۍ کې بې اتفاقي، خانه جنګي او ګډوډي شروع کیږي اورنګزیب خپل پلار (شاه جهان) بندي کوي، چې پس له اتو (۸) کالو په بند کې مري او خپل ورور (داراشکوه) وژني چې خوشحال خان ختک وايي:

یو عادل پاچا پیداسو اورنګزیب ددین غمخور

خپل پلار تړي په عدل په فتوا وژني خپل ورور

د خوشحال خان پورته بیت په ظاهره ستاینه ده او په باطن کې غندنه او ډري دي. وګورئ حیات افغاني (۱۱۷ مخ).

ځیني متعصبین وايي، چې احمدشاه بابا د هندوستان مرکزي حکومت کمزوره، بې سېکه او ناتوانه کی، انګریزانو ته ئې دا موقع ورکړه، چې هندوستان ونیسي، حال داچې لوی احمد شاه بابا غوښتل چې د هندوستان بې سېکه او پاشلي حکومت سره متحد او پر ښو ودروي، چې د انګریزانو په مقابل کې مقاومت وکي.

که چیري ستر ټولواک لوي احمدشاه بابا هندوستان ته نه وای تللی او مرهټانو ته ئې ماته نه وای ورکړې، بیا هم انګریزانو هندوستان نیوی.

خلق احمد نظامي په خپل کتاب ( شاه ولي الله دهلوی کي سياسي مکتوبات ) کي ليکي: دا خبره غلطه ده چي احمدشاه بابا ابدالي او شاه ولي الله دهلوي دانگريزانو د خطره بې خبره وه، بلکي حقيقت دا دئ، چي دوی پردې ببرېدل، چي د مغولي کمزوري امپراتوری، بي اتفاقي او گډوډي څخه انگريزان گټه پورته نه کي او هندوستان ونه نيسي. وگورئ دلوي احمد شاه بابا ياد ۶۷ مخ.

بل داچي داورنگزيب ترمرگ وروسته مغولي حکومت ډېر په تندي سره مخ پر زوال روان وو، عسکري يا نظامي مامورينو په سياسي او دولتي چاروکي مدا خله کوله، د هيواد سياسي او ملکي چاري د نظامي فوجيانو په لاس کي وې، لکه دا اوس چي سياسي، اجتماعي، ملکي او نظامي چاري په پاکستان کي دپنجابي جنرالانو په لاس کي دي، ملکي حکومت هيڅ صلاحيت او واک نه درلود.

د مغولي حکومت دامیرانو دبد اخلاقيو او نالايقيو په نتيجه کي انگريزان دې ته وهڅېدل، چي پر ډهلي حمله وکي او د مغولي امپراتوری تغر تول کي. وگورئ پښتانه دتاريخ په رڼا کي ۶۸۶ مخ.

د ستر ټولواک، لوی فاتح، پښتون غازي، لوی احمد شاه بابا د شخصيت په هکله د داخلي او باندنيو پوهانو نظرونه:

۱ ـ خدای بخښلی پوهاند علامه حبيبي ليکي: د احمد شاه بابا د لوړو کارنامو څخه په افغانستان کي دملي يوالي راوستل وه، چي ټوله اولس لکه غلجي، دراني، تاجک، ازبک، پښتون او هزاره په يوه نامه سره راټول کي او هغه بې اتفاقي چي د دوی په مابين کي موجودي وې له منځه يوسي.

۲ ـ افغان مؤريخ غلام محمد غبار په خپل اثر (احمد شاه بابا افغان ) کي ليکي: احمد شاه بابا په يو داسي محيط کي پيدا سوی وو، چي بېله دتو پونو د غرومبي، دټو پکو د ډزو او توري له شرنگه بل څه نه اوريدل کېدل.

احمد شاه بابا د مذهب او ملي اعتقاداتو زيات پا بند وو او خپلو زامنو ته به ئې ويل: چي مجرمينو ته په تحقير سزا مه ورکوئ.

۳ ـ اروا ښاد پوهاند علامه عبدالحي حبيبي د لوی احمد شاه بابا نومي کتاب په سريزه کي ليکي: زموږ د هيواد ډېر لوی، بريالی او د پښتو د تاريخ روڼ ستوری اعليحضرت لوی احمد شاه بابا دئ، د دنيا تاريخپوهان او پښتانه مؤرخين دی (احمد شاه بابا ) يو مشهور بريالی او ستر فاتح بولي، ده د خپلي توري او مېړاني په سيوري کي د افغانستان اوسنی دولت تشکيل کړی دئ....

لوي احمد شاه بابا لکه د اسيا پخواني فاتحين يوازي په خپلو جنگي تشکيلاتو او سو قياتو سره جهان نه وو فتح کړی، بلکي ده د خپلي توري سره قلم او له خپلي سربازی او توريالیتوب سره علم، فضيلت، تقوا او آدب هم درلود؛ څکه نو دی موږ يوازي د اسيا نامتو او دلاوره فاتح نه گڼو، بلکي د دې خاوري يو تکړه اديب، پوه عالم، عادل پاچا، لوړ شاعر، اجتماعي مصلح، ديني پېشوا او روحاني مقتدی هم بولو.

احمد شاه بابا لکه دپښتنو اجتماعياتو او عمومي ژوندون ته چي لوړ – لوړ خدمتونه کړي دي، دغسي

ئې د پښتو علم، ادب او شعر ته هم ګران بها او د ګټو ډک خدمتونه کړي دي.

زره سوا نداحمد شاه بابا چنګیز او ګوډ تیمور نه وو، چې د ډهلي قتل عام ئې د خلکو څخه د اصفحان لوی او مشهور قتل عام هېر کی او د ډهلي د جنګ په پیل کي ئې پنځوس زره (۵۰۰۰۰) بندیان تر تېغ تېر کړل.

غیاث الدین علي بن جمال الاسلام په روز نامه ئي غزوات هندوستان کي لیکلي دي: «در دهلي چند آن به قتل آمدند که حکایت قتل عام اصفهان منسوخ شد وروز پنجشنبه همه اهل قلعه (میر تهر) را از تیغ کز اینده زن و فرزندانا نرا اسیر ګرفته بعمارات آتش انداختند وحصار را ویران ساختند.

زموږ زړه سوانده غازي بابا د (تاریخ مظفري) په قول ۱۲ زره مرهټیان، چې د پاني پت په جنګ کې نیول سوي وه، د شجاع الدوله په شفاعت خوشي کړل. یعقوب داداشي او غلام محمد غبار دغه شمېره ۲۲ زره تنه ښوولې او یعقوب داداشي دا هم زیاتوي، چې هریوه ته ئې د خرڅ لپاره دوې - دوې روپۍ او یوه شړۍ هم ورکړه. وګورئ د احمد شاحي عصر نومیالي ۵۸ مخ.

اروابښاد استاد عبدالرؤف بینوا د افغانستان د نومیالیو په دریم ټوک، ۲۸۰ مخ کي د غازي بابا (لوی احمد شاه بابا) په هکله لیکلي دي: «احمد شاه بابا یو سپېڅلی مسلمان، غیرتي پښتون او عادل پاچا وو، د کمزورو ئې لاس نیوی او د زورورو ئې لاس پېچی، په دیني اوامرو او نواهیو، د ملي او پښتني دود او دستور کلک پابند وو، مجرمینو ته تر سزا ورکولو پر عفوه کولو ډېر خوښ وو. د احمد شاه بابا شخصي ژوند هم ډېر ساده او هر ډول تصنع او تجمل څخه سپېڅلی وو، ده هیڅکله د اعتدال له حده تېری نه کاوه، د ده اخلاقي ښېګڼو د ده د شخصیت په تکامل کي لویه اغېزه درلوده، ځکه نو افشار نادر ویل: «من در ایران، توران او هندوستان مردي چون احمد خان حمیده خصال و پسندیده افعال نه دیده ام.»

لوی شاعر میر حیدر صاحبزاده، چې د کندهار د ارغنداب په جوي لاهور کي او سېدی په (۱۴۰۷ هـ ق) مړ دئ، د لوی احمد شاه بابا په ستاینه کي د احمد شاه بابا خویونه تر عنوان لاندي داسي وایي:

چـې ږغیـړي مـؤرخین لـه دې ټولواکـه
ګانـه کیـږي معتـدل شـاه لـه اخلاقـه

د دینـداره ټولـواک زښتـه ډیـر غیـرت وو
لـه غیرتـه ئـې هرځـای کـې حکایـت وو

چـې اعمـال افعـال ده تـه کاتـه کیـږي
لـه شـاهانو عـادلانو حسـابل کیـږي

ډیـر پاینـده د اوامـرو مـذهبي وو
ولاړ تینـګ پرعـرف عـا داتو پښـتني وو

ښـه اعمـال صـالحه چـې ئـې داشـان دي
پـه همـت او بزرګـي ئـې شـاهدان دي

او اکثـره پښـتانه د دغـه غـولي
احمـد شـاه لـه اولیـاوو څخـه بـولي

محمد اصیف خان د تاریخ سوات په ۶۴ مخ کي لیکلي دي: د احمد شاه ابدالي حکومت د پښتنو د رسم او رواج او د هغوی د خواهشاتو مطابق وو؛ نو ځکه پښتانه د هغه تر جنډې (بیرغ) لاندي متحد سول.

داحمد شاه بابا دحکومت مقصد داوو:

۱: د پښتنو خورې ورې قبيلې د قومي وحدت په پړي تړل، په هغو کي مشترک قومي جزبات پيداکول او د عالم السلام سره ملحق کول.

۲: د پښتون حکومت استحکام. د يو رپ مؤرخين په دي متفق دي، چي لوی احمد شاه بابا عظيم سياست دان او ډېر مدبر ملي مشر وو. د احمد شاه باباپه دربار کي دهري قبلې يوڅو پوهنده مدبر نمايندګان موجود وه او د ټولو نمايندګانو مشتمله جرګه د هغه په پارلمنټ کي وه.

علامه اقبال لاهوری (۱۲۸۹ ـــ ۱۳۵۷ هـ ش) (۱۸۷۳ ـ ۱۹۳۸ ز) د پاني پت د قهرمان ستر ټولواک غازي لوی احمد شاه بابا (۱۱۶۰ ـ ۱۱۸۶ هـ ش) په ستاينه کي ويلي دي:

مثل فاتح آن امير صف شکن
سکه ای زدم با قليم سخن

په پورته بيت کي علامه اقبال لوی احمد شاه بابا د ترکيې له عثماني خليفه سلطان محمود خان سره تشبه کړی دئ.

پښتانه شاعر د پېښور اوسيدوکي (حاجي خان مير خان هلالي) دغه مطلب بېله تشبه څخه داسي راوړی دئ:

د توري د قلم پادشاهي خوند کړي تاسره
د شعر دادب جهاد امام احمدشاه

ملا عبدالباقي اخوند کاکړ (۱۳۴۴ هـ ش کال مړ) په خپل منظوم کتاب (تهذيب الواجبات) کي د احمد شاه بابا غازي د مجاهدې يادونه داسي کړي ده:

ښه مسلک د شاه احمد وو تردې قرنه سو تمام
خدای به نوی تجديد جوړ که نور ځلانده د اسلام

پرپه عقل لوشته چي احمد شاه فخر افغان
شهنشه دخراسان، سند، پنجاب و هندوستان

دکور پوښ ئې قلمکار وو، چای سوی دملتان
پرتربت دې صدرحمت وي، هم فقير و هم سلطان

يو پاکستاني مؤرخ ليکي: دپاني پت په ستره غزا کي د مرهټو د مشر واکمن پېشوا (بالاجي راو) زوی (بسواس) او تربور (سداشيو بهاو) ووژل سول. لوی احمد شاه بابا د هغو تعزيت نامه دکن ته ديوه استازي په لاس ولېږله، چي پېشوا بالاجي راوته ئې وراندي کړي، په دغه تعزيت نامه کي ابدالي فاتح د (بسواس راو) پر ځوانمرګی او د (بهاو) په وژل کېدلو افسوس ښکاره کړی وو او دائې هم زياته کړې وه «ما د سولې پېشنهاد دوی ته وراندي کړ دوی ځوانان وه، ويني ئې تودې وې، زما د سولې پېشنهاد ئې رد کړ.»

بهاو او بسواس راو هغه څوک وه، چي له دکنه څخه داحمد شاه ابدالي د سر په سودا رارهي سوي وه او تر کابله ئې د مسلمانانو او پښتنو مځکه د ځان کوله، مګر ستر ټولواک، لوی احمد شاه بابا د دوی د وينو په تويولو راضي نه وو، ځکه ئې د دوی د مړيني تعزيت نامه د دوی پېشوا ته واستوله.

د انسان دوسته احمد شاه بابا دغه رويه چي (مانسټوارټ الفنسټون) ئې په اړه دې ليکني ته مجبور سوی دئ: «د احمد شاه بابا وضعه له رعيتو، معاهدينو او حتا دښمنانو سره هم شريفانه وه؛ ځکه نو دا درې سره ډلي د ده اخلاقي لوړتيا ستايي.»

نور بيا...

واحد فقیري

# د افغانستان په سیاست کي د قومي او مذهبي مشرانو نقش ته یو نوی نظر

(دوهمه او وروستۍ برخه)

خوشحال خان خټک (۱۶۱۳ – ۱۶۸۹):

دا نادره عقیده لکه زما ده
لا عجب که بل پیدا هسي افغان شي

په ۱۷ پېړۍ کي پښتانه واقعا خوشبخته ول چي د خوشحال خان خټک په شان یو ستر مشر پکښي راپیدا سو. خوشحال خان واقعا تر خپل زمان څو سوه کاله مخکي فکر کاوه. د پښتنو د تاریخ مشهور انګریزي لیکوال اولاف کیرو په خپل جالب کتاب (د پټانز) کي د خوشحال خان په باب وايي هغه د خپل قام د «بغاوت روح او روان» وو. اولاف کیرو د خوشحال خان د ژوند په باره کي کاږي. پلار او نیکه ئې د خټکو خانان ول او د اټک د لاري او پله مالیات او «راهداري» ئې ټولول. د یوسفزو سره جنګونه او دوښمني د پلار او نیکه څخه ورپاته وه. کیرو لیکي چي په اول سر کي خوشحال خان د مغولو طرفدار وو، د شاه جهان سره ئې ښه او دوستانه روابط درلودل او شخصاً ئې څو کرته د شاه جهان سره کتلي دي او په مختلفو سفرونو کي ئې ملګری وو (مخ، ۲۳۱). د زماني په تېرېدو سره، د ډهلي په سلطنت کي د خټکو او یوسفزو د شخړو په باره کي نظر بدلېږي او ځیني مغل شهزاده ګان داسي فکر کوي، چي یوسفزي ستر قوم دئ باید پخلا سي. دغه راز، په همدې وخت کي اورزنګ زیب د راهداري محصول لغو کوي او دا فیصله د خوشحال خان لپاره ګرانه تمامېږي. (مخ، ۲۳۳) کیرو ادامه ورکوي او لیکي چي بالاخره د مغولو او خوشحال خان روابط دونه خرابېږي، چي خوشحال خان په ۱۶۶۴ کي لاس ترلی بندي ډهلي ته استول کېږي. په ډهلي کي د حاکم مغل په چلن کي خوشحال خان د خپل ځان او قوم سره یو څرګند سپکاوی او تبعیض احساسوي. د هغه عزت، ننګ او ملي هویت ته صدمه رسېږي او په زیاتېدونکي توګه اورنګ زیب داسي پالسي غوره کوي چي د پښتنو لپاره نوره د منلو وړ نه وي.

د خوشحال خان خټک د ژوند، فکر او نهضت په باب بله معتبره مرجع د (ارمغان خوشحال) مقدمه ده. دا مقدمه سید رسول رسا لیکې ده او څه باندي ۱۴۴ صفحې ده. سید رسول رسا کاږي چي د یوسفزو او خټکو تر مینځ جنګونه سل کلنه سابقه لري او خوشحال خان او پلار ئې شهباز خان پدې قومي شخړو کي څو کرته شخصاً ګډون کړی دئ او یو ځل پلار او

زوی دواړه پکښې ټپیان سوي دي. کله چي خوشحال خان د خټکو خان سو، د هغه اول کار پر یوسفزو باندي حمله کول وو (مخ، ۱۷). د سیاسي ژوند پدې مرحله کي، خوشحال خان د خټکو قومي مشر دئ او د ملي مشرتوب خیال نه لري.

سید رسول رسا لیکي چي په هند کي د قید او نظر بندۍ په وخت کي د خوشحال خان په فکر او سیاسي وفادارۍ کي ژور بدلون راغلی. د هند د قید او بند زمانه د خوشحال خان په ژوند کي یوه ټاکونکې او مهمه دوره ده. پدې وخت کي، د خوشحال خان سیاسي افکار د یوه قومي مشرتابه پر ځای پر ملي مسایلو باندي راڅرخي. هغه نور ځان یوازي د خټکو د قبیلې نماینده نه ګڼي، بلکي د هغه سیاسي افق اوس ملي او پراخ سوی وو او اوس ئې په ملي سطح فکر کاوه. د خوشحال خان د بند په اخر وخت کي، یوسفزي یو وار بیا د مغولو پر ضد شورش کوي او اورنګ زیب بالاخره خوشحال خان له بنده خوشي کوي، او وطن ته د تلو اجازه ئې ورکوي.

پسله بنده دئ دا عزم
د خوشحال د خاطر جزم

یا نیولی مخ مکې ته
یا مغولو سره رزم

په ۱۷ پیړۍ کي د مغولو پر ضد د خوشخال خان خټک نهضت له هر لحاظه ملي ګرا او نشنلسټ دئ. د خوشخال خان مبارزه اساسا قومي ده. داعیه ئې ملي او ازادي بخښونکې ده او خپل کلام ئې پدې باره کي هیڅ شک او تردید نه پر یږدي.

د خوشحال خان خټک په کلام کي د هغه ټرمینالوژي ملي ګرا ده. د هغه کلمات ملي احساسات راپاروي، نه مذهبي. د هغه په کلام کي د وطن مینه زیاته یاده سوې ده.

د وطن مینه ای جانه
را پیدا ده له ایمانه

نه د خپل دیار ګرګري
نه د بل دیار شکري

د خوشحال خان په کلام کي د «ازادۍ» کلمه بار بار تکراریږي او هغه د سیاسي ازادۍ مفهموم په داسي وخت کي تبلیغوي، چي د ازادۍ مفهموم په ډیرو ځایونو کي یو نوی او ناشنا سیاسي مفهموم وو. په تېره بیا د قومي نشنلیزم مفهوم خو بېخي نوی وو.

ازادي تر پاچاهیه لا تیری کا
چي د بل تر حکم لاندي شي زندان شي

د خوشحال خان په کلام کي د افغان نشنلیزم ډېر پر مختللی سیاسي مفهوم پروت دئ. خوشحال خان غواړي چي د مغل سره د مبارزې له لاري په یوه فرا – قومي مشر باندي ځان بدل کړي او د قومي محدودیت او چوکاټ څخه ځان را وباسي او ملي مشرتوب تر لاسه کړي. د هغه نهایي آرمان د مغل له سیاسي او نظامي سلطې څخه د خپل قام ازادول ول. په هند کي د قید او بند پر وخت هغه په خپل ذهن کي د مغلي حاکمانو پر ضد د ملي مبارزې ضرورت ومنی او د حبس پدې څلور کلنه دوره کي ئې د ازادۍ او مبارزې خیال په سر کي وپالی.

د خوشحال خان خټک نهضت کاملا یو خاني بغاوت دئ. د خوشحال خان مخاطب خټک، یوسفزي، پښتون، افغان او مغل دي، نه مجاهدین. خوشحال خان په شخصي ژوند کي هم لیبرال او

خوش طبع کس تېر سوی دئ. البته د اسلام دین ته معتقد او پابند وو، خو په فکر او شغل ملا نه وو. د هغه تاریخي هیروګان فرید خان او حمید خان دي. ایمل خان او دریا خان ئې ملګري دي. د خوشحال خان یاران، د مبارزې طریقه او مخاطب کسان ګرده ملي ګرا، نشلسټ، او سیکولر دي.

که مي چیري ننګیالي په لاسو کښېوزي
پري به لیري دا زما د زړه آرمان شي

و مغول و ته به هسي کار ښکاره کړم
چي راضي راځخه روح د فرید خان شي

خوشحال خان د خپل وخت اکثره علوم لوستي ول. په تاریخ، ادبیاتو، نظامي مسایلو او د ژوندانه په مختلفو برخو کي ئې ژوره مطالعه کړې وه. څرنګه چي د مغولو سره په جنګ کي ښکېل وو، نو خوشحال خان حتی د چریکي جنګونو په برخه کي هم مطالعه کړې وه او دا راز جنګونو ته ئې «قزاقي جنګ» وایه (علي احمد جلالي، مخونه، ۳۴–۴۵).

خوشحال خان په عربي، فارسي، پښتو او نورو هندي ژبو باندي پوهېدئ. په پښتو ژبه کي خپل مکتب، سبک او طرز لري. د پښتنو یو ستر فرهنګي څلي دئ. یو خارق العاده عالم، مبارز، شاعر، نظامي مشر او په عین زمان کي د ګڼو علمي اثارو مولف هم دئ (ارمغان خوشحال: مخونه: ۶–۱۰۴).

څرنګه چي د خوشحال خان سیاسي مخالفان د وخت پاچاهان او حاکمان ول، هغوی د خوشحال خان د خنثی کولو لپاره له پیسو، منصب، رشوت، تطمیع او بالاخره زور او زر څخه پوره کار واخیست. حتی په کور دننه کي ئې اختلافات ورته راپیدا کړل او بهرام غوندي زوی ئې ترې را جلا کړ. د خوشحال خان مخالفانو غوښتل چي د خان په حرکت کي فساد خور کړي، متاسفانه هغوی په خپل دې مقصد کي تر ډېره حده کامیابه سول او د خوشحال خان نهضت ئې له دننه کمزوری کړ. خو خوشحال خان تر پایه تسلیم نه سو او یو داسي فکري، ملي او مبارزاتي مکتب ئې پرېښود چي د خپل وخت په تاریخ کي د تخلیق او ابتکار بې ساری نضهت دئ. عجبه دا ده چي خپله خان هم پخپل خارق العاده توب باندي پوره واقف دئ.

دا نادره عقیده لکه زما ده
لا عجب که بل پیدا هسي افغان شي

خوشحال خان د خپل وخت فیلسوف هم دئ. د انسان د فطرت او ماهیت په باره کي ئې ژور فکر کړی دئ او په خپل کلام کي ئې مغلق فلسفي او وجودي مسایل په خورا ساده مګر سحرګر شکل بیان کړي دي.

هیڅ ماهیت ئې مونده نه شي
چي څه څیز دئ دا بشر

هم ترکیب د نیک او بدو
هم معجون د خیر او شر

هم ملک دئ هم حیوان دئ
هم مومن دئ هم کافر

څه خو لږ تر خدای راټیټ دئ
که ئې نه وي برابر

**بایزید انصاري پیر روښان (۱۵۲۵–۱۵۸۱):** د افغانستان د چارو مشهور او دقیق محقق ښاغلی ورتن ګریګورین په خپل کتاب (د معاصر افغانستان ظهور) کي په صراحت کاږي چي د «افغان نشنلیزم» او ملت

تر ټولو پخوانی اظهار د روښانیانو په نهضت کې د بایزید انصاري (پیر روښان) تر مشرۍ لاندې په ۱۶ پېړۍ کې راڅرګند سو. ګریکورین ادامه ورکوي او لیکي د پیر روښان نهضت د مختلفو طبقاتو افغانان د مغولو د حاکمیت پر ضد راپارول او دا لومړی ځل وو، چې «افغان ملت» یو سیاسي مفهوم پیدا کاوه. ګریکورین کاږي چې د روښانیانو د نهضت یو مهم هدف د افغان دولت بیا جوړول وو (مخ، ۴۳).

د جنوبي اسیا د مسایلو بل دقیق محقق جوس ګومانس په خپل کتاب (د هندو- افغان امپراتوري عروج، ۱۷۱۰-۱۷۸۰) کې کاږي: «په ۱۶ مه پېړۍ کې په هند کې د مغولو د حاکمیت له تثبیتېدو سره سم ډېرو پښتنو د مغولو سره همکاري شروع کړه، خو خینو د بغاوت او مقاومت لاره اختیاره کړه. په دې ډله کې یو پیر روښان وو.» جوس ګومانس وایي پیر ورښان غوښتل چې په پښتنو کې فرا - قومي عمل وکړي او زیاتره اقوام پر یوه واحد سیاسي مرکز باندې سره متحد کړي. د پیر روښان همدې سیاسي کوښښ د اقوامو د قدرت بلانس او سیاسي جوړښت ور خراب کړ او په نتیجه کې، د پښتني اقوامو ملکان او خانان د پیر روښان مخالف سول، ځکه د پیر روښان تعلیماتو د مغولو سره د پښتنو د قومي مشرانو کاروبار ته تاوان رساوه او د هغوی اقتصادي ګټې ئې په خطر کې اچولې. ګومانس باور لري چې د پیر روښان تحریک یو ازادي بخښونکی سیاسي غورځنګ وو، چې پښتني جامې ئې اغوستې وې او د پښتنو په غریبو طبقاتو کې ئې ډېر پلویان او مریدان درلودل. ګومانس لیکي چې پیر روښان په ځواني کې زیات سفرونه کول. هغه ډهلي، بدخشان، بلخ، بخارا او کندهار ته تللی وو، عموماً ئې د اسانو تجارت کاوه. د خپلو سفرونو په جریان کې پر محلي خانقاوو باندې ګرځېدی او د وخت له صوفیانو سره اشنا وو. (۱۱۰-۱۱۱)

مرحوم غبار پخپل کتاب (افغانستان در مسیر تاریخ) کې د پیر روښان مبارزې «طبقاتي» بولي او د خارجي «سلطې» پر ضد ئې «ملي حرکت» ګڼي. غبار لیکي: پیر روښان یو متقي او د کلک نظر خاوند شخص وو. کله چې کندهار ته ولاړ او هلته ئې د مغولو د حکومت ظلم او استبداد د یوې «افغاني ښځې» په مقابل کې ولید، د کندهار دا غمجنه خاطره ئې د عمر تر اخره پورې هېره نه سوه. پیر روښان ولیدل چې څرنګه د مغولو عسکرو یوه بې وزلې ښځه د ژرندې په ډېرې پورې په ورېښتانو تړلې وه او هغه خواره مجبورا د ډبرې له حرکت سره څرخېده. غبار لیکي: کله چې د پیر روښان پیرویان زیات سول، هغه« د بې وزلو او غریبو خلګو د کومک په غرض یوه خزانه تاسیسه کړه.» غبار وایي د مغولو حکومت د پیر روښان د ځپلو او بدنامولو په منظور «ارتجاعي روحانیون» لکه اخوند درویزه کرایه کړل او د پیسو، چل او نفاق په ذریعه ئې د پیر روښان په مقابل کې تیوریک او مذهبي مخالفت پیل کړ. (مخ، ۳۱۳)

استاد حبیبي پخپل کتاب (د افغانستان لنډ تاریخ) کې لیکي: پدې وخت کې افغانانو په هند کې سلطنت له لاسه ورکړی وو او دې ستري سیاسي او نظامي ماتي پښتانه خپل تېر برم او عظمت ته یو کرت بیا متوجه کړل. حبیبي وایي چې هغوی یو وخت په هند کې راج لاره، مګر اوس ئې د مغولو په اسارت کې ژوند کاوه. حبیبي کاږي څرنګه چې پیر روښان د پښتنو اسارت او بد حالت په خپلو اړدو سفرونو کې په خپلو سترګو لیدلی وو، نو بنا پیر روښان اراده وکړه، چې دا قوم یو وار بیا پر یو متحد سیاسي مرکز باندې سره راټول کړي. یو ملي حکومت جوړ کړي او د پښتنو د ازادۍ نغرۍ بیا تود کړي. حبیبي لیکي څرنګه چې پدې زمانه کې د تصوف بازار ګرم وو، نو بایزید هم مجبوره سو چې د وخت د تقاضا سره سم خپل آزادي

غوښتونکي سیاسي پیغام د تصوف په جامه کي عرضه کړي. (مخ، ۳۳۱)

مرحوم حبیبي بل ځای لیکي: بایزید په خلګو کي د پښتني حکومت د جوړولو نظر او فکر بیا راپیدا کړ. د یو ملي نهضت بنسټ ئې کېښېښود او روښاني نهضت ئې قریب یوه پیړی دوام وکړ بایزید د پښتو د ژبې د لومړیو لیکوالانو څخه دئ. په عربي، پښتو، فارسي او هندي ژبو باندي پوهېدی او لیک او لوست ئې په کولای سوای. په ۵۶ کلني کي په جنګ کي شهید سو او هدیره ئې معلومه نه ده. (مخ، ۳۳۴)

استاد حبیبي لیکي چي بایزید پیر روښان نافذ او جذاب شخصیت لاره (مخ، ۳۳۱). الفنسټن وایي بایزید یو «نابغه» شخص وو او زیات شخصي مهارتونه ئې لرل. د مغولو سره ئې څو مهم او ستر جنګونه وکړل، خو بالاخره «ناکامه» سو او «جل» ووهه (اول جلد. مخ، ۲۷۵). د خیر البیان مقدمه وایي چي بایزید «کم خوب او کم خوراک» کاوه او «چلې» ئې کولې، تل ئې کوښښ کاوه چي خپل «باطن پاک» کړي. «د دنیا کاروبار ئې خوشي» کړ (مخ ۴۵). حبیبي په خپل بل کتاب (دپښتو ادبیاتو تاریخ) کي کاږي چي پیر روښان دونه پوه او هوښیار سړی وو چي آن د هغه ستر مخالف اخوند درویزه هم د بایزید انصاري پر «عقل او فراست» باندي اقرار کړی دئ او پلار ئې عبدالله اصلا کندهاری اورمړ وو او په شغل قاضي وو (مخ، ۶۵۷).

افضل خان خټک د پیر روښان په باب عموما منفي خبري کوي او وایي چي «مذهبي فساد ئې اغاز» کړ، مګر افضل خان خټک مجبوراً دا هم وایي چي د پیر روښان داعیه د مغل سره «بدي» وه او تل به ئې ویل چي مغل «ظلم پېشه» دي او پر پښتنو باندي له حده زیات «ظلم» او ناروا کوي. (مخ، ۲۳۹)

ښاغلی بهادر شاه ظفر کاکا خیل په خپل مشهور کتاب (پښتانه د تاریخ په رڼا کي) لیکلي څرنګه چي اخوند درویزه یو «ترک» وو، نو بنا هغه غوښتل چي د پښتنو د ازادی تحریکات د ترک نژاده مغل پر ضد کمزوري کړي. کاکا خیل لوستونکي ته داسي انتباه ورکوي چي د مغل حکومت او اخوند درویزه په کولوژن کي سره وه او د پیر روښان پر خلاف ئې په ګډه کار سره کاوه. لیکوال عقیده لري چي د پیر روښان تحریک د «پښتون قام» د ازادی، ننګ او ناموس د «تحفظ» لپاره وو. کاکا خیل وایي چي د پیر روښان نهضت د پښتنو په ملي تاریخ کي د ملي ازادی لپاره ستري کارنامې ثبتي کړې. کاکاخیل باور لري چي د پیر روښان په هکه د اخوند درویزه الزامات او تورونه کاملا بې اساسه دي او خپله اخوند درویزه یو «افراطي مذهبي» شخص وو. (مخونه: ۶۷۶ – ۶۷۷)

میر محمد صدیق فرهنګ په خپل اثر (افغانستان در پنج قرن اخیر) کي له څه اوږده بحثه راوروسته وایي چي پیر روښان ځیني «ابتکاري او بې سابقه» کارونه وکړل او محافظه کارو روحانیونو سمدستي پر هغه باندي د «بدعت او انحراف» حکم وکړ. فرهنګ لیکي چي پیر روښان پخپلو مریدانو کي «ښځي» منلې او «د سماع په مجلس کي ئې د مشراکت اجازه ورکوله.» (مخ، ۳۲). محمد عبدالقدوس قاسمي د خیر البیان په مقدمه کي وایي چي بایزید خپل «خلافت نر او ښځي» ته سپاری (مخ، ۸۰).

داسي ښکاري چي بایزید پیر روښان په پښتني جامعه کي د ښځو مسایلو ته خاصه توجه کوله، د هغه په مریدانو کي ښځي شاملي وې او ښځو ئې په مجلسونو او جنګونو کي برخه اخیستله. ښاغلی قاسمي ادامه ورکوي او لیکي کله چي بایدیز پیر کامل سو، هغه خپله مېرمن خپلي طریقې ته راواړوله. په خلوت کي ئې کښېنوله او د معرفت لاره ئې ور وښودله. (مخ، ۴۷). د خیر البیان په مقدمه کي راغئي کله چي د بایزید مېرمن بي بي شمسو له جنګه وروسته د خپلو

زامنو پرې کړي سرونه ولیدل، هغې وویل: زما زامن «په غلاو کاسیري» کښې نه دي وژل سوي چې «خفه» سم. «آفرین شه در باندي زامنو!» چې د خدای په لاره کې محکم واست. (مخ، ۷۰)

اولاف کیرو په خپل کتاب (د پټهانز) کې لیکي چې په ۱۵۹۲ کې د پیر روښان د زوی جلاله ښځه او ماشومان مغولو په جنګ کې اسیر کړل او اکبر پاچا ته ئې یرغمل واستول (مخ، ۲۱۹). کیرو بل ځای کاږي چې د پیر روښان بل زوی احداد هم په جنګ کې مړ سو. خو د احداد «ښکلي کونډي» د مغولو پر ضد مبارزې ته دوام ورکړ. د احداد ښځې شخصاً په جنګونو کې ګډون وکړ او په څو جنګونو کې ئې مغل سخت مات کړل. د کلونو په جریان کې د احداد همدې ښکلي کونډې د خپلو سیاسي مهارتونو په وجه خپل یتیم زوی ته د روښانیانو مشرتوب ور وګټی. (مخ، ۲۲۷)

**نتیجه:** د پیر روښان، خوشحال خان، میرویس خان، د کندهار او هرات ابدالیان او د احمد خان له نضهتونو څخه دا خبره روښانه سوه، چې د انګریزانو سره تر مخامخ کېدو مخکې د افغانانو په سیاسي مشرتوب کې مذهبي اشخاصو او ایډیالوژۍ چندان مهم او بارز نقش نه درلود، بلکې ملي او قومي سیاسي ارزښتونو د افغانانو سیاسي احساسات راپارول. پدې ملي قیامونو کې د افغانانو ترمینالوژي ملي ګرا او نشنلسته وه. د خارجي اشغالګرانو پر ضد د افغانانو سیاسي داعیې قومي او ملي رنګ او محتوا لرله، پدې دورو کې د افغانانو سیاسي مشرانو قومي ارستوکراتیکي رهبري لرلې او یا د جنګونو په میدانونو کې بې ساري فردي قومندانانو ول، د بحراني حالاتو په سیاسي مشرتابه کې عموما د جرګو او قومي مشرانو د قدرت پله دېره درنه وه او سیاسي ریاست تل د هغوی په قبضه کې وو.

ماخذونه:


- میر غلام محمد غبار. افغانستان در مسیر تاریخ. ۱۳۵۹.
- میرغلام محمد غبار. احمد شاه بابا افغان. ۱۳۸۷. اسد دانش مطبعه.
- عبدالروف بېنوا. میرویس نیکه. ۲۰۰۵. د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه – جرمني
- علامه سید جمال الدین افغان. مترجم: محمد امین خوګیاني. تتمه البیان في التاریخ الافغان. ۱۳۷۳. پشاور
- محمد حیات خان. مترجم. فرهاد ظریفي او یاد طالبي. حیات افغاني. ۲۰۰۷. دانش خپرندویې ټولنې
- ارمغان خوشحال. مقدمه سید رسول رسا. یونیورستي بک اینجنسي. پېښور.
- عبدالحی حبیبي. مترجم. نېنوا. د افغانستان لنډ تاریخ. ۱۳۵۶. دولتي مطبعه.
- افضل خان خټک. تاریخ مرصع. مقابله، تصحیح او نوټونه. دوست محمد خان کامل مومند. یونیورستي بک ایجنسي.
- فرهنګیالی خوشحال. د سر محقق زلمي هیوادمل په زیار. علي احمد جلالي: خوشحال خان او قزاقي جنګ. مخونه: ۳۴ – ۴۵.
- کروسینسکي. مترجم. وجیه الله شپون. د مسیحي سیلاني تاریخ. ۲۰۰۵. دانش خپرندویه ټولنه.
- بایزید انصاري. خیر البیان. مقدمه. عبدالقدوس قاسمي. ۱۹۸۸. پښتو اکیډمي/پېښور یونیورستي.
- عبدالحی حبیبي. د پښتو د ادبیاتو تاریخ. اول او دوهم جلد. ۲۰۰۵. دانش خپروندیه ټولنه.
- میر محمد صدیق فرهنګ. افغانستان در پنج قرن اخیر. ۱۹۸۸. امریکن سپیدي، امریکا.
- عبدالباري جهاني. هرات، پښتانه او ستره لوبه. ۲۰۰۱. کوټه. صحاف نشراتي موسسه.
- Senzil K. Nawid. Religious Response to social change in Afghanistan ۱۹۱۹-۲۹. Mazda Publishers, Inc. ۱۹۹۹.
- Moutstuart. Elphinstone. An Account of the Kingdom of Caubul. Indus Publications. ۱۹۹۲.
- Sir Olaf Caroe. The Pathans. Oxford University Press. Karachi. ۱۹۹۰.
- Louis Dupree. Afghanistan. Princeton University Press. ۱۹۸۰.
- Christine Noelle. State and Tribe in Nineteenth-Century Afghanistan. Curzon Press. ۱۹۹۷.
- Vartan Gregorian. The Emergence of Modern Afghanistan. Stanford University. ۱۹۶۹.
- Jos J. L. Gommans. The Rise of Indo-Afghan Empire, c. ۱۷۱۰-۱۷۸۰. Oxford University. Delhi. ۱۹۹۹.
- Ferdrik Barth. Political Leadership Among Swat Pathans. Berg. Oxford. New York. ۲۰۰۴.
- J. P. Ferrier. History of the Afghans. ۲۰۰۹.
- Olivier Roy. Islam and Resistance in Afghanistan. Cambridge University Press.New York. ۱۹۹۰.

• Ludwig W. Adamc. Historical Dictionary of Afghanistan. Manas Publications. India. ۲۰۰٦

ډاکټر نثار احمد صمد واصفي

# د کاڼي کرښه

بسم الله الرحمن الرحيم ـ په هندوستان کې د مغولي واکمنۍ د زوال پر مهال د پنجاب والي (نواب ذکريا خان) وو. هغه د ۱۷۲۶ راهيسې د ډېرو کلونو لپاره د لاهور مشر وو، څو چې په ۱۷۴۵ کې مړ سو. ذکرياخان يو پښتون غيرتي ځوان چې (مومن خان) نومېدی، د لاهور کوتوال يعنې د پوليسو قوماندان وټاکی. مومن خان ډېر ښايسته، غيرتي، تکړه، وفادار او زړه ور انسان وو هر څوک ځني ببرېدل.

په هغه شپو ورځو کي د لاهور په بټي بازار کې د مشهور (رانا پرتاب) خپلوان هم اوسېدل. دغه کورنۍ د خپل عزت او شهرت له مخي په ټول لاهور کي لوړ مقام درلود. په دې کهول کي يوه ډېره ښکلې پيغله هم وه، چي لاج ونتي (لاجونتي) نومېده.

لاجونتي د مؤمن خان د حيثيت، هيبت، جرائت، دبدبې او ښکلا په باره کي ډېري خبري اورېدلي وې، نو ځکه ناديده پر مينه سوه. هغې خپله يوه مزدوره د خپل دغه مين توب رازداره کړه. لاجونتي به هره ورځ د هغې سره د مؤمن خان په باره کي ډول ـ ډول خبري کولې او ډېر څه به ئې ورڅخه اورېدل. هغې خپلې مزدوري ته وويل چي متوجه اوسه، کله چي مؤمن خان زموږ سيمي ته راسي نو ما خبره کړه تر څو له نږدې ئې ووينم او په ديدن ئې مړه سم.

يوه ورځ تصادفاً مزدوره دباندې په کوم کار پسې تللې وه، چي يو دم ئې د حکومتي چارواکو د سپرلۍ جلوس وليدی، چي دې خوا ته راروان وو. مزدوري د خلکو څخه وپوښتل چي دا څوک دئ او څه قصه ده؟ هغوی ورته وويل چي د مؤمن خان کوتوال سورلۍ را روانه ده او ټول حکومتي مامورين په ادب او احترام ورته ولاړ دي.

نجلۍ دوې پښې خپلې او دوې ئې پور کړې او په دومره سرعت سره کور ته ولاړه، چي ساه ئې بېخي نسوه اخيستلای. هلته ئې لاجونتي ته وويل چي هله، ستا محبوب مؤمن خان را روان دئ! لاجونتي چي له مخکي څخه لا د مؤمن خان په سوچونو کي ډوبه وه او ټوله ورځ به ئې د هغه څېره، ښکلا او غيرت ځانته انځور کاوه، بېله څنده او بېله تدبيره يو دم را وغورځېده، په زړه ئې بريښنا ننوتله او د سترګو په رپ کي سرک ته راووتله، چي خپل محبوب له نږدې ووينې.

دا مهال مؤمن خان هم راورسېد، چې د يو شاهزاده غوندي روښانه څېره او وياړمنه سليقه ئې وه، لاجونتي خپل ځان کنټرول نکړای سو او بې اختياره ورغله او د مؤمن خان د آس کيزه ئې په لاسونو کې ونيوله او سترګې ئې د هغه په سترګو کې ښخې کړې.

مؤمن خان هم ودرېدی او فکر ئې وکړ، چې کومه عارضه ده او غواړي چې خپل مشکل بيان کړي.

مؤمن خان په سره سينه او پښتني جذبه ورڅخه وپوښتل چې اې نجلۍ! څه خبره ده؟ څه غواړې؟ څه مشکل لرې؟

لاجونتي چې د ده د ميني په اور کې تپېدله، پرله پسې رېږدېده او د دې لپاره چې وخت ضايع نسي يا نور مراجعين رامخته نسي، خپل اصلي آرمان ئې داسي ورته ووايه: «زه هيڅ شی نه غواړم بلکي تا غواړم او پر تا مينه يمه.»

مؤمن خان چې د ښکلي پيغلي دا ځواب واورېد، نو جټکه ئې وخوړه او هيڅ ئې هم و نه ويل او پټه خوله پاته سو. د هغې وران او زهير حالت ته ګوري او زړه ئې په ټوپو سو، داسي نه چې اوس حاضرين کوم ناوړه ګومان پر وکړي. څو شېبې همداسي چپ د خيالونو په ټال کې زنګېدی او هغې ته ئې په ځېر ـ ځېر کتل، بيا ئې شا و خوا حاضرينو ته وکتل، هغوی ټولو مخونه واړول. مؤمن خان پوه سو چې د پاڼې او پړانګ تر منځ ګير راغی، نو ئې هغې ته وويل: اې نجلۍ، ته څه شي غواړې؟ اصلي عرض دې راته ووايه؟

لاجونتي پوهه سوه چې بېله مقدمې ئې اصلي راز او اصلي آرمان ورته ووايه، شا وخوا ئې وکتل، پر سر ئې پوړنۍ هم نه وو، څېره ئې هم عادي نه وه، حاضرينو هم ټولو ورته کتل او تر ټولو ناوړه لا دا چې د دې د خپلي کورنۍ معززين هم حاضر وه. بس يو دم ئې په دماغ کې راوګرځېدل چې اوس خو مې دا غلطي وکړه او کار تر کار تېر سو، کورنۍ عزت مي زيانمن او د هر چا د خبرو سوم. نو ځای پر ځای دې نتيجې ته ورسېده، چې خپل ارمان بايد پرې نږدم او مقصد ته ورسېږم او بايد د خپل معشوق سره سپيني خبری وکړم.

نو داسې ورته وويل: زه پر تا مينه يم او غواړم چې واده درسره وکړم!

مؤمن خان په خندا ورته وويل: آيا ته زما سره واده کول غواړې؟

لاجونتي خپلی سترګي نيغي د خپل محبوب په سترګو کي ښخي کړي وې او د هغه د څېرې طواف ئې کاوه، هيڅ ئې مخ نه څني اړاوه او نرۍ ـ نرۍ عاجزانه اوښکي ئې په سترګو کي حلقه سوې. د خپل محبوب د غبرګون په انتظار ئې لاسونه او ټول بدن رېږدېدی.

شاوخوا ټولو حاضرينو لاجونتي ته چا په حسرت او چا په حقارت کتل. لاجونتي په دې فکر او تمه وه، چې اوس به نو د دې معشوق د خپل عشق اظهار وکړی او خپله ليلا به پر آس سپره کړي او کلا ته به ئې ورسره بوزي، هغې سر کرار ـ کرار ښوراوه او مؤمن خان ئې پوهاوه، چې د خپل پښتني غيرت څخه کار واخلي او خپله محبوبه په مراد ورسوي.

مؤمن خان په موسکا سره ورڅخه وپوښتل چې ته ولي زما سره واده کوې او بيا نو څه غواړې؟ هغې ښله سوچه ژر ځواب ورکړ، چې ستا سره د همېشه لپاره ګډ ژوند غواړم او همدا ستا غوندي ښايسته او غيرتي زوی غواړم.

مؤمن خان وخندل او داسې ورته وويل: اصلي خبره خو دا ده چې زه مسلمان يم او ته هندوانۍ، نو ځکه زموږ واده نسي کېدای او که بيا هم واده وسي د دې څه ضمانت سته، چې زموږ ژوند به خوږ او تر پايه ګډ وي او داڅوک تضمين کولای سي، چې موږ به زوی ولرو که لور او که هغه زوی هم وی نو آيا کټ مټ به زما غوندي وي، يعني هغسي چې ته ئې غواړې؟ مؤمن خان وروسته چپ سو او لاجونتي تې د موسکا په حال کي کتل، څو شېبې دواړه همداسي پټه خوله وه او هر يو په خپله ـ خپله دنيا کي ډوب وو؛ يو د وظيفوي کارونو او مسؤليت په حصه کي او بل هم د خپل محبوب سره د ژوندون جوړولو په آرمان کي.

مؤمن خان په داسي حال کي چې ستر ګي ئې برابري د لاجونتي ځيرې ته نيولی وې، له آسه راکښته سو، کرار ـ کرار د هغې خوا ته ورنږدې سو او داسي ئې ورته وويل: ښه! ته صرف د دې له پاره زما سره واده کول غواړې، چې زما غوندي زوی ولرې؟

د دې پوښتني په اورېدو سره د لاجونتي خزان وهلی باغ يو دم وغوړېدئ، شګوفه ئې وکړه، تازه او ښېرازه سو؛ زړه ئې په ټوپو او ټول وجود ئې په اميدو سو. بس په عاجزانه او معصومانه انداز ئې ورته وويل چې اول تا غواړم، بيا ستا غوندي زوی!

مؤمن خان نور هم نږدې ورغی او لاجونتي د خوښۍ او ولولو څخه په جامو کي نه ځائيده او ټول بدن ئې له نشاط او هوسه ريږد واخيست؛ دا ځکه چې خپل محبوب ئې دومره ځانته نږدې وليدی، چې ځان ئې د هغه په غېږ کي محسوس کړ داسي چې د ناز لاسونه پر تېروي!

مؤمن خان په دغه وخت کي خپل سر کښته ځړولی وو، څېره ئې له پښتني حيا څخه ډکه وه، ستر ګي ئې مځکي ته نيولي وې او دواړه لاسونه ئې جوړه ورته پورته کړل؛ په داسي حال کي چې ستوني ئې وچ ـ وچ کېدی د نمسکار په توګه ئې داسي ورته وويل: ګوره پېغلي ته نوره زما سکنۍ خور ئې او زه ستا ورور سوم!

دا ږغ تالنده وه، چې ټکه ئې د هغې پر بدن راولوېده، هغې چې د پاکي ميني او محبت کوم کور ګی جوړ کړی وو ټول په يوه درب ونړېدا او لوټې ـ لوټې سو. لاجونتي ژوندۍ وه خو نوره مړه غوندي وه. فکر، سوچ او ټوله دنيا يې لکه افعي مار په غاړه کي راتاو سول او هغه ئې خفه کړه، ستوني ئې وچ او ږغ ئې بند سو، ستر ګي ئې تياره سوې، زړه ئې ولوېد، لاسونه ئې بې حرکته او پښې ئې بې سېکه سوې، کرار ـ کرار د مځکي خوا ته لوېده او اوږدې زلفي ئې پر سپينو اوږو را ولوېدې، څو چې دا هم پر مځکه ولوېده او ټول وجود ئې په سړو خولو کي لوند خيشت سو، نوره په حال کي نه وه او تش کالبود غوندي سوه.

مؤمن خان چې دا له غمه ډکه صحنه وليده، سخت پښيمان او پرېشان سو او ځان ئې ملامت وباله او د ځان سره ئې وويل چې د دې نجلۍ خون به زما پر غاړه وي او لکه چې غټه خطا او ګناه مې وکړه، بس ستر ګي ئې له اوښکو ډکي سوې او بې اختياره ئې خپل پټو رواخيست او د لاجونتي پر اوږو ئې واچاوه او دواړه لاسونه ئې هماغسي د نمسکار په توګه په داسي حال کي جوړه ورته نيولي وه، چې په زړه زخمي ورته ولاړ دی او وجداناً ځان سخت ملامتوي.

خو مؤمن خان یوه پښتني ګایه وکړه، داسي خبره چي بیا نه راګرځي؛ نه د پښتون ولی له مخي، نه د انسان ولی له مخي او نه هم د اسلام ولی له مخي، ځکه هغې ته ئې خور وویله، د الله تعالی او بندګانو په مخ کي. هو! دا د کاڼي کرښه ده.

دا مهال ټول حاضرین پټه خوله سوله او د مچ بوڼ هم نه اورېدل کېدئ، مؤمن خان چي سر راپورته کړ او شا وخوا ئې وکتل ټول حاضرین داسي وه لکه ارواحونه چي ئې وتلي او مړه وي.

مؤمن خان په نا امیدی او مأیوسی خپلو نږدې کسانو ته وکتل او هغوی پوه سول او راغلل. دوو درو کسانو مؤمن خان تر لاسو ونیوی او یوې خوا ته ئې روان کړ او دوو درو نورو لاجونتي راولاړه کړه او به یې ور کړې او هر یوه د ګراني خور خطاب ورته کاوه.

لاجونتي یو څه سمه سوه، نور یې هیڅ شاوخوا و نه کتل او د یوې زخمي هوسی غوندي کرار – کرار د خپل کور خوا ته روانه سوه. نوره دا هغه لاجونتي نه وه په کوم امید او هوس چي له کوره راوتلې وه، هغه مهال تازه خو اوس پژمرده وه. هغه مهال ټکنی او ګلالی خو اوس ابی او لیونی وه، هغه مهال پېغله خو اوس بوډی وه، هغه مهال هوسونه خو اوس غمونه وه، هو! دا هر څه په صرف نیم ساعت کي لاندي باندي سول، ګډوډ سول، تالا والا سول، لوټ او چور سول. د هغې دنیا ورانه، زړه ئې مات او ژوند ئې برباد سو....

مؤمن خان هغې ته د احترام او درنښت په توګه خو په مړو سترګو کتل، موسکائې نوره پای ته ورسېده او زړه ئې له داسي غمه ډک سو، چي بیا هیڅکله را و نه وت، ده د ملامتی او پښېماني د اوښکو څخه په ډکو سترګو لاجونتي ته کتل څو چي هغه ئې له نظره غایبه سوه.

خو لاجونتي نور قطعاً تر شا نه کتل او په دې هم ښه پوهېده چي مؤمن خان ځای پر ځای ولاړ دی او هغې ته ګوري. هو! لاجونتي خپل بری او مؤمن خان خپل شکست یو بل ته ثابت کړل خیر دی، چي دی یو غیرتي پښتون او هغه یوه عادي هندوانی وه.

کله چي لاجونتي له نظره غایبه سوه، نو مؤمن خان سوړ اسوېلی وکیښ او سر ئې د نفي په توګه ښوراوه، په داسي حال کي بیرته پر خپل آس سپور سو، چي د پخوا پر خلاف خپلو ملګرو رکاب ورته نیولی وو او د ختلو کومک ئې ورسره وکړ. د حکومتی غټانو دغه سپړلي ښېله دې چي خپل مأموریت بشپړ کړی بیرته پر شا ولاړل او مؤمن خان هم برابر خپلي کلا ته ننوت.

هر کله چي به د هندوانو او مسلمانانو مذهبي مراسم وو؛ لکه: هولي، دېوالي، لوی او کوچنی اختر نو مؤمن خان به د لباسونو، ګېڼو او نورو ډول – ډول تحفو څخه ډک خلاتونه (خلعتونه) لاجونتي ته ورلیږل او یا به ئې شخصاً په خپله په داسي حال کي وروړل چي د خپلي کلا څخه به د هغې تر کوره لوڅې پښې ور روان وو او په خاص احترام او سرخوړی سره به ئې هغه ورته تقدیمول، هر کله چي به د خور او ورور خاصه ورځ راورسېده نو مؤمن خان به په ډېر ادب د لاجونتي تر لاس ډېر ګران بیه (راکي) وتړل او د هغې خورا ډېر احترام او عزت به ئې وکړ.

هر ځل چي به مؤمن خان په دغسي مذهبي مراسمو کي د هغې حضور ته راغی، نو وبه ئې لیده چي

لاجونتي تر مخکني وخت ډېره زړه سوي ده، کله ـ کله به ئې ورته وويل چي ته يو څوک انتخاب او خوښ کړه زه به داسي واده درته وکړم چي ټول هندوستان به ئې ساری نه وي ليدلی، هغې به صرف يوه خبره ورته وکړه او هغه دا چي «زه نه د واده يم او نه واده زما لپاره دئ.»

مؤمن خان لا هماغسی ځوان وو، خو لاجونتي تر وخت دمخه زړه او بوډۍ سوه، هغې د ژوند تر پايه واده ونکړ او د مؤمن خان څو غمونه ئې په ځان کي هضم کړل: لومړی د هغه ليونۍ مينه او محبت، بيا د هغه بې تابه جدايي او بېلتون او وروسته د هغه سوغاتونه او ديدنونه.

د لوی اختر په يوه ورځ مؤمن خان د لاجونتي حضور ته د ورتګ اراده وکړه، يو ډېر نږدې دوست ئې ورته راغی او کرار ئې ورته وويل چي صاحبه د لاجونتي کور ته مه ورځه، مؤمن خان چيغه وکړه او وې پوښتل چي آيا هغه مړه سوې ده؟ ورته وويل سوه چي هو کې! يوه مياشت مخکي مړه سوې ده او مسلسل ئې ستا پوښتنه کوله.

مؤمن خان په کريږو او بې تابيو سره فريادونه وکړل چي يا الله ومي بخښه، يا الله د هغې په ګناه مي مه نيسه؛ يا الله زه ګناه کار يم، يا لويه خدايه نه دا ويلای سم، چي هغه وبخښه او نه دا ويلای سم چي ما مه بخښه، نو اې د کايناتو عظيم خدايه! ما ډېره عظيمه ګناه کړې ده، يو خو دا چي هغه به زما سره تر واده وروسته مسلمانه کېده او بل دا چي د هغې سپېڅلي مينه مي له مځکي ووهله او هغه همداسي نامراده او نامسلمانه پاته سوه، نو يا لويه خدايه! ته غفور او غفار يې، ته شافي او کافي يې، ته قادر او مقتدر يې، ته رحيم او کريم يې، ما د هغې پاکه مينه د غرور په توره ټوټه ـ ټوټه کړه، زه د هغې قاتل يم، زه د هغې مجرم يم او زه د هغې د خاموشانه مړيني او قربانۍ سبب يم، نو يا الله! خپل دغه ګناه کار بنده وبخښه، توبه مي قبوله کړه او د لاجونتي د پاکي ميني د تباهۍ سزا مه راکوه يا الله ـ يا الله!.

تر دې وروسته به مؤمن خان ټوله ورځ عبادت، تلاوت او رياضت کاوه، څو چي د کار څخه ئې تر وخت دمخه تقاعد واخيست او بيرته خپل ټاټوبي يعني غزني ته راستون سو، خو تر پايه ئې واده ونکړ او زړه ئې له غمونو او حسرتونو ډک پاته سو.

هو! په رښتيا چي هندوستان د قيصو او حادثو وطن دئ، د مينو او افسانو وطن دئ، د بېلتون او پيوستون وطن دئ، د ولولو او ارمانو وطن دئ او باالاخره د وفادارېو او شوګيرېو وطن دئ.

پورتنۍ قصه زموږ د ملي تاريخ او ملي کلتور يوه تلپاتې برخه ده، چي د افغانستان او هندوستان تاريخونه به ئې په خپلو پاڼو کي ساتي، هو! د دې دواړو هيوادونو تاريخونه سره تړلي دي، يعني زموږ تاريخ د هغوی د تاريخ له لوستلو پرته نيمګړی دئ او د هغوی تاريخ زموږ د تاريخ له لوستلو پرته نيمګړی دئ.
والسلام

مأخذونه:


۱. قرآن مجيد او پنځه انساني قوتونه (په اردو ژبه)؛ علي اصغر چودري، نوی ډيلی (۱۹۸۸م).

۲. د پند او عبرت قصې (دوهم ټوک)؛ نثار احمد صمد واصفی، کندهار (۱۳۹۳هش).

حیات الله رفیقي

# طلوع افغان له برمه تردې دمه

(۱۳۰۰ل - ۱۳۹۷ل)

د هغه وخت څخه چي انسان د دې خاورني نړۍ پرمخ د هستوګني تګ راپیل کړی، نو هغه وخت ئې د ژوند د سمون او قوام لپاره بیلي - بیلي لاري رامنځ ته کړي، چي د وخت په تېرېدو سره د ژوند د مطالبو د لیکني لړۍ ئې راپیل کړل، چي داکار د لیک د رامنځ ته کېدو په جریان کي یوشمېر منظم بعدونه ئې راوزېږول، چي یو ئې هم د مطبوعاتو ښاخ وو، دې څانګي هم د نورو څانګو په څېر پراختیا وموندل او د دې پراختیا علمي څپې زموږ تر ګران هیواد پوري هم راورسېدې، چي لومړی پلا دا حرکت په منظم او علمي توګه دستر ټولواک امیر شېرعلي خان په وخت کي د سیدجمال الدین افغان په لارښوونه رامنځته سو، وروسته تریولړ نانــدریو او نـــاخوالو دا حرکـــت د امیرحبیب الله خان په همت بیا راژوندی کړل سو، چي د امیر حبیب الله خان وروسته د شاه امان الله غازي د واکمنۍ په دوران کي دې حرکت ولایتوته هڅونه وکړه، چي زموږ په ولایت (کندهار) کي د لومړي ځل لپاره په کال (۱۳۰۰ل) کي د چنګاښ په (۱۵) نېټه د سردار عبدالقدوس خان نائب الحکمه په وخت کي د کندهار د یوه پیاوړي شخصیت (مولوي صالح محمد هوتک) په هڅو او کوښښ د طلوع افغان په نوم یوه رسمي جریده تاسیس اوخپره سول.

د دې جریدې طلوع افغان کمي اوکیفي بڼه په دې ډول وه:

طلوع افغان په کال (۱۳۰۰ل) کي د چنګاښ پر (۱۵) نېټه د مولوي صالح محمد هوتک په مدیریت په ښکلي صحافت د (۲۸نیم×۴۴) سانتي مترو په کچه په دوو مخونو کي دلومړي مخ کي د سر په منځنۍ برخه کي د طلوع افغان نوم په ثلث خط لیکل سوی وو. د طلوع افغان ترنامه لاندي دریل په څېر د لیکل سوو تورو په منځ کي د غنمو د ښکلو وږو د خول په څېر تر تورولاندي په دري ژبه لیکل سوې جمله (هر که اب از دم شمشیر خواد نوشت باد) وه. راسته طرف ته د کډون دلارښود او چپه خواته بیا د کډون بیه لیکل سوې وه. تردې لاندي بیا دري ډوله نېټه او

تاریخ لمریز، سپوږمیز او زیږدیز، لیکل سوې وه. وروسته بیا د طلوع افغان نور موضوعات راوړل کېده او لیکل کېده، چې لومړی بسم الله شریفه او بیا وتولواک ته دوعا او د اخبار شروع کېدو منته سوې وه.

دوهم مضمون بیا د حوادثو داخله تر سرلیک لاندې تاسیس مکتب تجار قندهار په اړوند لیکل کېده.

در بیمه مقاله بیا پښتو وه، چې د اخبار ګټې ئې بیانولې او بل خای بیا دحوادث خارجه په نامه لیکل کېدل او نور مضمونونه وروسته پسې راتلل، چې د دباندني خبرونو ژباړې چې د منشي محمدعثمان بارګزي په واسطه کېده او لیکني ئې عبدالعزیز الکوزي یاني باباعزیز کولې.

دغه تاریخي جریده (طلوع افغان) په هغه وخت کې په ډبرینه یا لتوګرافیکه بڼه چاپېدل، د چهارشنبې په ورځ رااوتل.

د طلوع افغان دکلمې مفهوم او مقصد دلوی استاد علامه حبیبي په قول له کندهاره د لوی احمدشاه بابا پاڅون په ګوته کړی دئ.

په هرصورت پسله یوه کاله څخه یاني په کال (۱۳۰۱ل) کې تر اوه دپرشمي ګڼې ورسته د وري په لومړی نېټه د طلوع افغان مدیریت د مولوی صالح محمد څخه معارف د زیاتو بوختیاوو په وجه د دغه مدیریت چاري په هغه وخت کې و ښاغلي باباعبدالعزیز (باباجان) ته وسپارل سوې. د باباجان په طلوع افغان کې یوازنی تغیرداوو، چې د مخه طلوع افغان د چهارشنبې په ورځ راوتی، خو باباجان دغه ورځ د شنبې ورځې ته واړول.

باباجان تر (۱۳۰۹ل) کال پوري پر همدې دنده وو، ترڅو چې باباجان دکندهار د خلکو د استازي په توګه ملي شورا ته واستول سو، چې د طلوع افغان د مدیریت چاري بیا د ده د مرستیال (علامه عبدالحي حبیبي) ته وسپارل سوې او په کال (۱۳۱۰ل) کې حبیبي صاحب د طلوع افغان دجریدې د رسمي مدیر په توګه ونومول سو.

په سقوي دوره کې طلوع افغان دلنډوخت لپاره بند او مویدالاسلام نوم ورکول سو.

کوم وخت چې حبیبي صاحب د طلوع افغان رسمي مدیر سو، نو د ده لومړی کار داوو، چې د همدې جریدې نیمه برخه ئې پښتو کړه، ورسته له یوه کاله څخه بیا ټوله جریده یاني ټول طلوع افغان په پښتو ژبه چاپېدل او خپرېدل او دا یوازینی اخباروو، چې په پښتو خپرېدی، علاوه پردې چې طلوع افغان وپښتوته واوښتی نورتغیرات هم پکښې راوستل سول او د هره پلوه دبډاینې لور ته سوق کړل سوو، کچه ئې هم لویه سول او....

په کال (۱۳۱۹ل) کې حبیبي صاحب د پښتوټولنې دلوی مدیر او د مطبوعاتو د مرستیال په توګه وټاکل سو، د طلوع افغان دمدیریت چاري بیا وښاغلي محمدیوسف ایازي ته وسپارل سوې، په دغه وخت کې دکاغذ دکمښت په وجه د طلوع افغان کچه کوچنی سوه، وروسته دیوه کال څخه د طلوع افغان ډبرین چاپ وحروفي چاپ ته واړول سو او په اونی کې دوه ځله د خپرېدو ویاړ ورپه برخه سو.

په کال (۱۳۲۲ل) کې طلوع افغان ورځ پاڼه کیږي خوکچه ئې نوره هم کوچنی کیږي.

په کال (۱۳۲۹ل) دايازي صاحب پرځای ښاغلي قيام الدين خادم صاحب راځي يو کال ورسته د طلوع مديريت وښاغلي محمدشاه ارشاد صاحب ته رسيږي تر ارشاد صاحب ورسته محمد نيم اريا او بيا ورپسې ښاغلی محمدولي ځلمی د طلوع افغان دمدير په صفت ټاکل کيږي، په کال (۱۳۴۰ل) کې دا مديريت اغامحمد کرزي صاحب ته رسيږي ترده ورسته بيا ښاغلی غلام محی الدين ايوبي راځي او په کال (۱۳۵۵ل) محمدابراهم عطايي صاحب د دې مديريت مسؤليت منې په همدې ترتيب په کال (۱۳۵۷ل) کې ښاغلی شهامت خيبري صاحب چې ورسته بيا شيراغا ورپسې مولاجان او محمدظاهر شفق يو په بل پسې مديران کيږي.

د طالبانو د راتګ په وخت کې د طلوع افغان جريده د څه وخت لپاره بندېږي ورسته بيا د دې جريدې مسئول مدير مولوي احمد جان احمدي وو، په دغه وخت کې د طلوع افغان کچه وړه وه، هره پنجشنبې خپرېده خو ورسته بيا د طلوع افغان کچه لويه او هم په کمپيوټري سستم له چاپه راووته.

د طلوع افغان مدير په کال (۱۳۷۵ل) کې تريوه کال پوري ښاغلی رحمت الله رحمت او بيا په کال (۱۳۷۶ل) کي د طلوع افغان مدير يارمحمدهمتوال وو او په کال (۱۳۷۷ل) کي مدير نه وو معلوم، چې د مدير پرځای دکندهار ولايت ليکل کېدی. په دغه وخت کي د طلوع افغان په وړه کچه هره يکشنبې او پنجشنبې راوتی.

په (۱۳۷۸ل) کال کي د طلوع افغان مسئول مدير ښاغلی احمدالله دقيق وو او په (۱۳۸۰ل) کال کي بيا د نومورې اخبار چاپ شپږو مخونو ته ورسېدی، يانې په شپږومخونو کې چاپېدی او خپرېدی. په کال (۱۳۸۱ل) کال کې د اطلاعات او فرهنګ په رياست کي د ښاغلي عبدالمجيد بابي د رياست په دوره کې د طلوع افغان جريده په اونۍ کې درې ورځې ديکشنبې، سې شنبې او پنجشنبې په ورځو کې د عبدالقدوس باعث په مديريت د محمدابراهيم سپيځلي په مرستيالي چاپېدله.

د طلوع افغان اخبار تردې دمه پوري په نقصان کي دئ، هغه پدې مانا، چي ځيني لنډ وخت به ورځپاڼه په وړه کچه چاپېدی بل وخت به بيا جريده سول، په غټه کچه به په شپږو مخونوکي په رنګه ښه چاپېدی، چي ښه مثال ئې نننی د طلوع افغان اخبار دئ، چي دا څو ورځې کيږي په شپږو مخونوکي په رنګه ښه چاپيږي، خو راتلونکی ئې معلوم او مشخص نه دئ. زه خپله دا ننه ليکنه د دې لاندي څو بيتو په ويلوپای ته رسوم.

طلوع به سي ورځپاڼه بيابه نه وي داګيلې
ځوانان به سي پوه پاله بيا به نه وي داپلمې

ناخوالي به سي کمې ځواکمن به مو فرهنګ سي
رسنۍ به سي پريمانه بيابه نه وي افسانې

زبیر افغان

# د اخلاقو سرچینه؛ ټولنه که شریعت؟

د اخلاق لفظ د لغت او تعریف په اړه معجم اللغة العربیة المعاصرة لیکي:

أخلاق [جمع]: مف خُلُق: مجموعة صفات نفسية وأعمال الإنسان التي توصف بالحُسن أو القُبح.[1]

ژباړه: اخلاق جمع او مفرد یې خلق دئ، هغو نفسي صفاتو او انساني کړنو ته ویل کیږي، چې د ښه یا بد اطلاق پرې کیږي.

هېره دې نه وي، چې د ټولنیزو پدیدو لپاره یو رنګه ټولمنلی تعریف نه سي وړاندې کېدای، د اخلاقو په اړه هم ګڼ تعریفونه وړاندې سوي دي. زه دلته لازمه نه بولم چې د تعریفونو په اړه ئې ډېرې خبرې وکړم همدا یو تعریف د خبرو د پیل او بحث لپاره کافي بولم.

مقدس متونه پر دوو اړیکو باندې تمرکز کوي. د انسان اړیکه له خدای سره او د انسان اړیکه له انسان او خپلې ټولنې سره. لومړۍ اړیکه په مقدس متن کې د (دین) په نوم یادېږي او دویمه ئې (شریعت) بلله کیږي.

د شریعت په برخه کې اخلاقیات هم راځیو بلکې اخلاقیات د شریعت یوه لویه برخه جوړوي. هره انساني ټولنه ځیني اخلاقي فورمولونه لري، پخوا په قبایلي ژوند کې دې اخلاقي اصولو د ننني قوانینو کار ور کاوه او ټولنه ئې تر یوه حده له تشنج او ګډوډۍ څخه ساتله، څکه هر چا چې به د ټولنې اخلاقي اصول له پامه اچول، نو د ټولنې له سخت غبرګون سره به مخکېدل چې له امله ئې بیا د ټولنې افرادو کوښښ کاوه چې تر خپله وسله د ټولنې اخلاقي فورمولونه رعایت کړي، ننني قوانین هم تر یوه حده د ټولنې له موجودو اخلاقي اصولو څخه تر اغیز لاندې دي.

---

[1] معجم اللغة العربیة المعاصرة، ۱۶۷۱ خ ل ق: ۱ / ۶۸۸، د احمد مختار عبد الحمید عمر لیکنه، د عالم الکتب اداري چاپ، څلور ټوکه، لومړی چاپ په: ۲۰۰۸م.

شریعت هم د انساني ټولني لپاره راغلی، همدا وجه ده چې په شرعي متونو کې ګڼې اخلاقي لارښوونې او اصول تر سترګو کېږي. لکه چې د یوې ټولنې ټول اخلاقي فورمولونه د هرې ټولنې او هر وخت لپاره نه وي، همدارنګه په شریعت کې راغلې ټول چوکاټونه هم د هرې ټولنې لپاره نه دي. ځکه شرعي احکام په خپل ذات کې هغه احکام وي چې لنډمهالي او خصوصي وي. په مقابل کې ئې دیني احکام دي چې اوږدمهالي او عمومي وي.

راځم دې ته چې ایا د ټولنې اخلاق له شریعت څخه سرچینه اخلي او که کیسه برعکس ده؟ که څوک ادعا وکړي چې د ټولنې اخلاقي سرچینه؛ شرعي متن وو. نو زما په اند د ګردو په اړه به دا ادعا پر واقعیت بنا نه وي او که بل طرف ته دا خبره مطرح سي چې د شرعي متن ټول اصول او فورمولونه له ټولنې او کلتور څخه سرچینه اخلي؛ دا هم فکر کوم د انصاف خبره نه ده. په یوه نبوي حدیث کې هم دې موضوع ته اشاره سوې:

عَن أَبِي هُرَيرة، عَن النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيه وَسَلَّم قال: إنما بعثت لأتمم مكارم الأخلاق. ([2])

ژباړه: ابو هریره رضی الله عنه له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه روایت کړی، چې ده ویل: زه د غوره اخلاقو د بشپړتیا لپاره رااستول سوی یم.

له دې حدیث څخه مالومېږي چې په ټولنه کې اخلاقیات تر دین و شریعت مخکې هم موجود وي، شریعت او رسول ئې غوره انتخابوي، له بدو ئې ځان ساتي، ځیني نوي اخلاقي ارشادات هم راوړي، په دې ډول شریعت نه بشپړ مرجع بلل کېدای سي، نه دا سمه ده، چې شریعت و اخلاقیات سره بیل دي، بلکې اخلاقیات موجود وي، شریعت اضافي او کموني پر کوي.

زه دا فکر کوم چې د شریعت په متن کې راغلې اخلاقي لارښووني ځیني له هغه کلتور او ټولني څخه سرچینه اخلي چې متن پکښې نازلېږي او ځیني ئې بیا استثنائي بنه لري، دا ځکه وایم چې په هره ټولنه کې تر شریعت مخکې هم ځیني اخلاقي ضوابط موجود وي او د یوې ټولنې ټول پخواني اخلاقي اصول نه له یوه مخې داسي ویو چې باید شریعت ئې رد کړي او نه شریعت کله هم له یوې ټولنې سره داسي معامله کړې ده، له دې ښکاري چې په شرعي متن کې ځیني اخلاقي لارښووني له هماغه کلتور څخه سرچینه اخلي که څه هم لیږ و ډېر تراشل ئې خوړلي وي.

بل لور ته بیا ځیني داسي هم دي چې یوې ټولنې ته ئې د یوې اخلاقي پدیدې د بدلون امر کړی وي، یا ئې بدیل ئې ور کړی وي، یا ئې هم له یوه کاره منعه کړې وي یا ئې بېخي نوی اخلاقي اصل رامنځته کړی وي. له دې برخي ئې ښکاري چې ټولني ځیني اخلاقي ضوابط له شرعي متن څخه تر لاسه کړي.

د لومړۍ خبرې یو مثال:

إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ وَإِيتَاءِ ذِي الْقُرْبَى وَيَنْهَى عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنْكَرِ وَالْبَغْيِ يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ (٠) وَأَوْفُوا بِعَهْدِ اللَّهِ إِذَا عَاهَدْتُمْ وَلَا تَنْقُضُوا الْأَيْمَانَ بَعْدَ تَوْكِيدِهَا وَقَدْ جَعَلْتُمُ اللَّهَ عَلَيْكُمْ كَفِيلًا - (سورة النحل: آیت ۹۰، ۹۱)

---

[۲] مسند البزار، مسند ابي حمزة انس بن مالک ح: ۸۹۴۹، د ابو بکر احمد بن عمرو البزار لیکنه، د محفوظ الرحمن زین الله، عادل بن سعد او صبري عبد الخالق الشافعي په تحقیق، د مکتبة العلوم و الحکم چاپ، مدینه، ۱۸ ټوکه، د چاپ پیل یې په: ۱۹۸۸ – پر ۲۰۰۹ ټول چاپ سوی)

ژباړه: بېشکه الله د عدالت، احسان او قریبانو ته د ور کړې امر کوي او له فحشا، منکر او بغاوته منعه کوي، د پند منلو په خاطر در ته وعظ کوي. د الله ژمنې پوره کړئ کله چې ژمنې وکړئ، قسمونه تر ټینګښت وروسته مه ماتوئ په داسې حال کې چې تاسو الله ور باندې څارونکی کړی وي.

دلته ذکر سوي اخلاقي لارښوونې داسې نه دي چې په ټولنه کې په دې څوک نه پوهېدل، بلکې ځینې کسانو د همدې لپاره مبارزه کوله که څه هم په مجموع کې زیاتره کسانو ښه پاملرنه ورته نه کوله. شریعت د ښې پاملرنې په خاطر پر دې یادو لارښوونو تاکید وکړ چې که ئې څوک د خپل وجدان، کلتور او ټولنې له امله سم خیال نه ساتي د خدای په امر خو باید ټول خدای پالان د دې اصولو ښه پوره خیال وساتي.

خو په همدې شرعي متن کې بیا د زندانیانو په اړه قران کریم هغه اخلاقي اصل بیان کړی، چې د هغې زمانې په کلتور، قانون او اخلاقو کې ئې مخینه نه لرله:

فَإِذَا لَقِيتُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا فَضَرْبَ الرِّقَابِ حَتَّىٰ إِذَا أَثْخَنتُمُوهُمْ فَشُدُّوا الْوَثَاقَ فَإِمَّا مَنًّا بَعْدُ وَإِمَّا فِدَاءً حَتَّىٰ تَضَعَ الْحَرْبُ أَوْزَارَهَا. (سورة محمد: آیت ۴)

ژباړه: نو کله چې له کافرانو سره مخ سئ، بیا د غاړو وهل دي ان چې دوی ښه وټکوئ بیا ئې ټینګ وتړئ، وروسته ئې یا احسانا ایله کول دي یا په فدیه کې، څو چې جنګ د سرېدا لورته ستنېږي.

د جنګي بندیانو په اړه د قران کریم دا لارښوونې بې سابقې دي. شریعت د انسان لپاره د هغه زندان لار بنده کړه، چې مخکنې او اوسني انسانانو د نورو په اړه د عمري قید او اوږد زندان پرېکړې کړې او کوي یې. دا ئې د ټولنې برخه وه، وژل هم د اخلاقي قانون یوه ضمیمه وه، کلونه ـ کلونه د زندان د تیاره دیوالونو شاته د انسانانو بندي کول هم له خورا لرغوني دور څخه په انساني ټولنه کې رواج وو او دي. نن په ماډرنه دونیا کې هم د زندان لپاره خپل اصول سته او لا هم په هغو هیوادونو کې چې اوله درجه بلل کېږي انسانانو ته پکښې د عمري قید فیصلې کېږي. د اسلامي شریعت له مخې په جنګ کې نیول سوي بندي به یا په فدیه خوشې کېږي او یا به احسان ور سره کېږي. له دې ښکاري چې دلته بس همدا دوه حکمه دي چې دریم (په زندان کې ساتل) ته پکې مجال نه سته؛ البته تر هغو چې جنګ سرېږي، یاني په جنګي وختونو کې اجازه سته چې یو څوک تر یوې مودې په زندان کې وساتل سي.

څنګه چې شرعي متن د انسان په ژبه انسان ته راغلی، انسان ئې عملي کوي، په انساني ټولنه کې نازل سوی، له دې امله نو ټول هغه عوارض ورته پېښېږي، چې د انسان په لاس لیکل سوي متن ته ور پېښېږي. همدا وجه ده چې د شریعت په متن کې د راغلیو اخلاقي لارښوونو په اړه د مسلمانانو ترمنځ د هغو د ګیو اړخونو په اړه ګڼ اختلافونه وجود لري. زما د دې لوړ تحلیل په اړه هم د پوهانو ترمنځ له ډېرې پخوا څخه اختلافات سته او اوس هم نه دي حل سوي. له هغو مالوماتو چې ما تر لاسه کړي دي زما اند دا دی چې لوړ مې له مثالونو سره ذکر کړ.

نثاراحمد آریا

# د ناول کرکټر کښنه

(دوهمه او وروستۍ برخه)

**د کرکټر داخلي اړخ یا ارواییي انځورونه:**

د کرکټر داخلي اړخ "دا څرګندوي چې کرکټر عقده یي دئ که بې عقدې، سم فکر کولای سي که بې فکره دئ، پوه دئ که نا پوه، دا او داسي نور ټول نفسیاتي حالات د کرکټر په کړو او سلوکو اغېز شیندي.

دا سمه نه ده چي یو ګوښه نشین سړی یو دم بې له کوم منطقي دلیله ګوښه نشیني پر پرېږدي، ټوکي او جرګه مار سي. منطقي دلیل باید غښتلی وي، کمزوری نه وي، لکه د ځینو عربي فلمونو کرکټرونه چي په هیڅ اړ نه وي، نه په غلا نه په شوکه نه په خپل نه په بل نه په کور او نه په کهول او چي یو زوی ئې په کومه پېښه کي مړ سي، دی یو دم سم سي، ټول بد خوینه پر پرېږدي. دا ځکه نا سم دلیل دی چي په یو مخ بې لاري سړي کي پلر نۍ مینه داسي په اسانۍ او ژر نه سي را برسېره کېدای.

که څه هم بشر په هر ډول اجتماعي، ذهني او نفسیاتي حالاتو کي له شر سره خیر هم لري، خو د دې خیر د څرګندولو له پاره لیکوال بشري نفسیاتو ژوري تجربې او د غښتلي منطقي دلایلو وړاندي کولو ته اړ دئ، څو په دې ډول لوستونکي ته د کرکټر بدلون طبیعي ښکاره سي.

یو شمېر لیکوال د کیسو کرکټرونه یا ډېر ښه یا ډېر بد انځوروي. دوی دې ته پام نه دی کړی، چي انسان په خپل ذات کي خیر هم لري او شر هم. داسي خلک سته چي ښو ته ئې مخه وي او داسي هم چي بدو ته ئې پام وي، خو له پیغمبرانو پرته یو مخ ښه سړی او له شیطانانو پرته یو مخ بد نه سته. په انساني ژوند کي هر وخت د شر او خیر یو ټکر او مخامخېدنه وي او دا دنیا همداسي روانه ده." (۱۱ : ۳۸).

**د کرکټر ټولنیز تصویر:**

د دې له پاره چي لیکوال خپل کرکټر ژوندی ثابت کړي، نو ده ته په کار ده، چي د خپل کرکټر ټولنیز اړخونه روښانه کړي. د کرکټر په ټولنیزو اړخونو کي یو اړخ د ده د کورني تړاو دئ، چي څوک دئ؟ کورني تړاو ئې له چا سره دئ؟ او داسي نور د اړتیا وړ معلومات باید لوستونکي ته څرګند سي. بل مهم اړخ ئې د ده مصروفیت دئ، چي په څه بوخت دئ؟ "کرکټر مامور دئ، کاګر دئ، بزګر دئ، که زده کوونکی، شتمن دئ، که نېستمن، کوچی دئ، که ښاري....

ښکاره ده چې اجتماعي اړخ د کرکټر په انځوریدا او د هغه په سلوک او کړو کې ستر اهمیت لرلای سي، مثلاً مور، نه سو منلای چي یو کوچی دي د پوهنتون د ښوونکي په څېر فکر او سوچ وکړي، البته دا دوه کرکټره ځیني یو شان خصوصیات لري، لکه عاطفه چي په ښځو کي سره ورته ده.

که لیکوال کوچی داسي انځور کړي چي پر خپل مېړه ولاړه وي او د پوهنتون استاده پر خپل مېړه او پایله داسي راسي چي پر دواړو یو ډول مېړه ګران وي، نو پروا نه کوي، خو په دې شرط چي د استادي او کوچی تصرفات یو ډول نه وي.

د دې خبري مطلب دا نه دی چي کوچی دي کوچیاني غیرت ولري، خپل خاوند دي وهي او هغه دي ورته غلی وي او استاده دي مېړه ته ښکاره وعظ او نصیحت کوي، بلکي هره یوه باید خپل مقام، نفسیاتو او چاپېریال مطابق د عمل ابتکار ولري. لیکوال باید دا هر څه په منطقي دلایلو وړاندي کړي، داسي چي لوستونکی قانع سي، چي کرکټر طبیعي وړاندي سوی دئ."(۱۱ : ۳۹)

**د لیکوال بې پرېتوب:**

همدا رنګه د دې له پاره چي لیکوال خپل کرکټرونه له مصنوعیت څخه خلاص کړي او د ژوندي انسان له صفت څخه ئې برخمن کړي، نو د دې له پاره یو بل شرط دا دئ، چي لیکوال تر خپله وسه بې پرې پاته سي او کرکټر خپل فطرت ته پرېږدي.

"د نوي کرکټر لیکني د رښتینتوب تیوري دا تقاضاء کوي، چي د کرکټر کښني پر وخت لیکوال باید بې پرې او منفعل وي، خو په عملي توګه دې اصل ته ډېره لږ پاملرنه کیږي. د دې لامل دا دئ، چي لیکوال د کرکټر پنځوني ته هغه مهال هڅېږي، کله چي له یو شي څخه اغېزمن سي. د ده د فطرت دا مېلان د هغه د بې پرېتوب خنډ ګرځي. که چیري پر دې اصل ټینګار وسي، نو ښایي په ناول کي د مصنوعیت او تکلّف اثرات راڅرګند سي" (۱۰ : ۳۷).

په دې ځای کي لومړی دا خبره باید روښانه سي، چي څنګه یو لیکوال خپل کرکټر فطرت ته پرېښوولای شي؟ زما په نظر د دې له پاره ښه لار دا ده، چي لیکوال د خپل کرکټر طبقاتي، اخلاقي، اروایي او نور اړخونه په نظر کي ونیسي او بیا د یوې پېښي په اړه د هغه غبرګون ته انعکاس ورکړي. دا کار ښایي ستونزمن وي، خو ناممکن نه دئ.

په پورتني اقتباس کي بله خبره د لیکوال د بې پرېتوب د خنډ رامنځ ته سوه. دا په رښتیا هم یو لوی خنډ دئ، خو د کرکټر کښني ماهرین د دې خنډ د حل یوه لار دا ښیي، چي له کومو ټولنیزو، مذهبي او اخلاقي رسمونو څخه اغېزمن دئ، هغه افکار دي، د مرکزي کرکټر پر ځای د فرعي کرکټرونو په وسیله په ناول کي وړاندي کړي."په کرکټرونو کي د مذهبي یا قومي پلویتوب څرکونه ښکاره کېدل نا اشنا او حیرانونکې خبره نه ده...ناول لیکونکو (همېشه) د ادبي، ټولنیزو، مذهبي او اخلاقي رسمونو پر ضد خپل ږغ د کرکټرونو په جامه کي وړاندي کړی دئ، (خو) د مرکزي کرکټر له لاري د خپلو افکارو د وړاندي کولو اړتیا نسته. که ناول لیکونکی وغواړي، نو دا کار د خپلو فرعي او دوهمه درجه کرکټرونو له لاري هم وړاندي کولای سي."(۱۰ : )

زما په نظر د دې خبري لوی هدف دا دئ، چي مرکزي کرکټرونه باید خپل فطرت ته پرېښوول

سي. دا چې مرکزي کرکټرونه له لوستونکو سره ډېر مخامخېږي، نو له دې امله که غیر فطري وي، نو مصنوعیت ئې ډېر ژر لوستونکو ته په ډاګه کېږي.

**طبیعي مکالمه:**

"د کرکټرایز ښښن یوه مهمه ځانګړنه ډیالوګ دئ. ډیالوګ لوستونکي ته زمینه مساعدوي چې د کرکټر باطن ووینې او په هغو لاملونو پوه سي چې نوموړی په کیسه کې د ځینو کارونو کولو ته هڅوي."(۱۲: ۶۲) د دې له پاره چې لیکوال خپل کرکټرونه حقیقت ته نژدې کړي، نو په دې برخه کې د طبعي مکالمې کارونه هم ډېر رول لري. لیکوال باید د خپلو کرکټرونو له ټولنیز موقف، ذهني او اخلاقي کیفیت سره سمه مکالمه کار کړي. که مکالمه د یو کرکټر له هر اړخیز موقف سره برابره نه وي، نو د کرکټر ربښتینوالی له خنډ سره مخامخ کوي او لوستونکو ته مصنوعي ښکاري.

**له زمان او مکان سره سمون:**

د ناول کرکټر چې په کوم زمان او مکان کې ژوند کوي، نو کره وره ئې باید د هغه وخت او ځای نمایندګي وکړي. د دې له پاره لیکوال اړ دئ، چې د هغه ظاهري بڼه، مکالمه، افکار، فعالیتونه او نور اړخونه د ناول د زمان او مکان سره سم معرفي کړي. د بېلګي په ډول که د یو ناول زمان د حامد کرزي د حکومت دوره او ځای ئې کندهار وي، نو باید د کرکټرونو لباس، افکار او نور اړخونه له همدې زمان او مکان سره سمونه ولري.

"ځیني کرکټرونه یوازي د دې له پاره جوړېږي چې کیسه ربښتیني وښیي. د بېلګي په توګه، کله چې اصلي کرکټر د کوم شي د اخېستلو له پاره دکان ته ځي هلته باید دکاندار وي، یا که هغه بانک ته ځي هلته باید هرومرو مامور وي. دا کرکټرونه یوازي ددې له پاره اړین دي چې په کیسه کي حقیقي ژوند ته انعکاس ورکړي.

دا ډول کرکټرونه معمولا د لوستونکي په یاد کي نه پاتېږي. نو له دې امله اړینه نه ده چې د هغوئ د شخصي ژوند په هکله په کیسه کي ډېر معلومات ورکړل سي، خو که چیري د هغوی د ژوند طرز له هاغه زمان او مکان سره چې په کیسه کي ښودل کیږي، مطابقت ونه لري نو دا وخت د لوستونکي زیاته توجه خان ته اړوي او پر کیسه باور ته زیان رسوي."(۱۲: ۶۷).

**غوره کرکټر کښښنه:**

د کرکټر کښښني په تېر بحث کي پر دې وږغېدو، چې یو لیکوال څنګه کولای سي، خپل کرکټرونه حقیقي ژوند ته نژدې کړي؟ اوس پر دې هم څه نا څه بحث کوو، چې څنګه خپل کرکټرونه د غوره کرکټر کښښني له ښېګڼي برخمنولای سو؟

که څه هم دا بحث له پورتني بحث سره څه نا څه نژدېوالی لري، خو که ووایو، چې د کرکټر کښښني دغه بحث تر هغه یو څه پر لوړو مسایلو خبري کوي، نو بې ځایه به نه وي. یا په بله وینا دا هغه خبري دي، چې یو ځوان لیکوال تر پورتنیو خبرو وروسته باید پام ورته وکړي.

په دې بحث کي لومړی خبره د کرکټر ځانګړتیا (انفرادیت) ده."د ناول لیکونکي په نظر حقیقي کرکټرونه هغه دي، چې د انساني ژوند پر اصولو برابر وي او په هغو کي د عامو انساني افرادو په څېر یوه ځانګړتیا هم موجوده وي...سکاټ د خپلو

کرکټرونو په اړه وايي: ((ما همېشه هڅه کړې ده، چې زما کرکټرونه عمومي او خيالي څرګند سي. يعنې په دوی او د انساني ژوند په کرکټرونو کې بايد لږ ورته والی موجود وي)) د کرکټرونو د پنځولو پر مهال ليکوال بايد دې ته متوجه وي، چې د ده خيالي کرکټرونه د انساني ژوند له عامو اصولو سره برابر وي او په هغوی کې يوه داسې ځانګړتيا هم موجوده وي، چې هغه ته له نورو سره توپير ورکړي او د همېشه له پاره ئې ژوندی کړي. دا هم ممکنه ده، چې په دې ډول کرکټر کښنه کې څو يا ځينې ځانګړنې له معاصرو کسانو سره ورته وخېژي.

ډېر ناول ليکونکي دا خبره مني، ډېر هغه کرکټرونه چې لوستونکو (د ربښتيني ژوند) د خاصو اشخاصو ګمان پر کړی دئ، يا سوچه د ناول ليکونکو د ذهن محصول ول او يا يوه داسې مجموعه وه، چې (ليکوال) له بېلابېلو کسانو څخه راټولي کړي وي." (۱۰: ۳۸).

**د کرکټر انفراديت:**

د غوره کرکټر کښنې يو خصوصيت دا دئ، چې مهم کرکټرونه د حقيقيوالي تر څنګ يوه انفراديت (ځانګړتيا) هم ولري، دا هغه ټکی دئ، چې لوستونکي ئې د ناول لوستني پر مهال له ليکواله تقاضا لري.

په مهمو کرکټرونو کې انفراديت (ځانګړتيا) پيدا کول له بېلابېلو لارو څخه کېدای سي، په دې لارو کې ځينې په لاندې ډول دي:

**الف ـ ځانګړی صفت درلودل:**

د دې له پاره چې خپل مهم کرکټرونه له يوې ځانګړتيا څخه برخمن کړو، نو يوه لار دا ده، چې خپلو کرکټرونو ته يو ځانګړی صفت ورکړو، دا صفت ښايي په اخلاقي، فزيکي او يا بله برخه کې وي.

په اخلاقي برخه کې ښايي خپلو کرکټرونو ته د ربښتيني، ژمن، خواخوږي، کينه کښ، حاسد او ... صفتونه ورکړو، همدارنګه په فزيکي برخه کې کېدای سي، خپل کرکټرونه د ځواکمنتيا، کمزورتيا، ښايست، بدرنګی او ... صفتونو څخه برخمن کړو.

همدارنګه ښايي يو ليکوال دا کار کرکټر ته د يوې ځانګړې نخښې د ورکولو له لارې هم وکړي. "دا نخښه کېدای سي فزيکي ځانګړنه وي، لکه د بدن د غړو غټوالی، وړوکوالی، نری والی، اوږدوالی... همدا رنګه کېدای سي د ورېښتو شکل وي، د جامو ډول وي... د ږغ ځانګړنه وي، يا بل هر څه چې د بل تن سره د مخامخېدو پر مهال د هغه په وجود کې ډېر تر ستر ګو کيږي.

پر دې سربېره په يو تن کې د څو نخښو شتون هغه په اسانه او روښانه توګه له نورو څخه بېلوي. خو په ياد کرکټر کې د دا ډول نخښو د شمېر بې اندازې زياتوالی د ستونزو لامل کيږي. په فرعي کرکټرونو کې د نخښو شمېر حد اقل يا دوې وي، مګر په اصلي کرکټرونو کې دا شمېر تر پينځو رسېدلی سي، ځکه چې لوستونکی له هغوی سره ډېر وخت تېروي او غواړي چې ډېرې ځانګړنې ئې وپېژني.

ځينې نخښې کېدای سي د کيسې په اوږدو کې په تدريج سره لوستونکي ته وړاندې سي. خو يوه له هغو څخه بايد ډېره وتلې او لکه د تندي ټاپه وي. هغې ته بايد نژدې هر ځل يا هر دوهم ځل د ياد کرکټر

په راپېدا کېدو اشاره وسي. تر دې چې دا ښه آن د نوموړي د نوم حیثیت غوره کړي."(۱۲: ۶۴).

**ب – ځانګړې عادت لرل:**

په حقیقي ژوند کې نژدې هر کس ځانګړې عادت لري. د ځینو کسانو عادتونه ډېر ځرګند او ځینو ډېر ځرګند نه وي. هغه کسان چې عادتونه ئې ډېر ځرګند وي، هغوی چې کله خبري کوي، نو مخاطبین او لیدونکي ډېر ژر پوهېږي، چې عادت ئې څه دئ؟ د بېلګې په ډول یو کس داسي وي، چې کله خبري شروع کوي، نو د خبرو تر پیل مخکې ئې نرۍ موسکا عادت وي. دا خبره که د موسکا وي، که نه خو هغه د خپل عادت له مخې دا کار کوي.

لیکوال باید په عام ژوند کې د ناستې پاستې پر مهال د خلکو عادتونو ته دقت وکړي او د ځینو عادتونه د خپلو ناولونو د کرکټرونو له پاره انتخاب کړي.

**ج – ځانګړې جذبه لرل:**

لکه څنګه چې انسانان د رنګونو او بڼو له مخې توپیر سره لري، همدا رنګه د دوی ذهني او باطني نړۍ هم جلا، جلا وي. ځیني کسان وطن پرست وي، ځیني ځان پرست، ځیني بنسټپاله وي، ځیني منځلاري... دا او دې ته ورته ډېري نوري داسي جذبې، چې یو کرکټر له نورو کرکټرونو څخه په ځانګړې کولای سو.

**د کرکټر باطن ته ننوتل:**

لوستونکي د یو کرکټر د پېژندني له پاره دوو تصویرونو ته اړتیا لري: یو ئې ظاهري او بل ئې باطني وي. د هغه په ظاهري تصویر کې لیکوال د کرکټر بڼه، عمر، ورېښتان، لباس او نور فزیکي اړخونه لوستونکي ته معرفي کوي او په باطني تصویر کې د هغه خوی، فطرت، مفکوره، اخلاق، دماغي حالت، احساسات او... ور پېژني.

د کرکټر د ظاهر بڼي پر معرفۍ مو مخکې خبري وکړې اوس به پر دې وړغېږو، چې له کومو لارو د یو کرکټر باطن ته ور ننوتلای سو؟

د کرکټر د ذهني نړۍ د ور پېژندلو یوه طریقه دا ده، چې لیکوال د خپل کرکټر اخلاق لوستونکي ته وپېژني، احساسات ئې ځرګند کړي، مذهبي تمایلات ئې روښانه کړي او دماغي حالت ئې بیان کړي.

همدارنګه بله طریقه ښایي دا وي، چې موږ " له هغو برخلیک ټاکونکو پېښو پرده پورته کړو، چې د هغه (کرکټر) په تېر ژوند کې پېښي سوي دي. همدغو پېښو د هغه په شخصیت جوړونه کې مهم رول لوبولی دئ.

ښه نو څنګه کولای سو، دا هر څه ځان ته معلوم کړو؟ دا کار په هغه صورت کې کېدای سي، چې لاندي پوښتنو ته مو جواب موندلی وي.

- ستاسي کرکټر له جسمي او همدارنګه ذهني پلوه څو کلن دئ؟ په ځوانۍ کې د زوړ فکر خاوند دئ، که برعکس؟
- آیا خوشحاله وړوکوالی ئې درلود؟ ولې، هو! ولې نه؟
- څه ډول اړیکې ئې مخکې لرلې او څه ډول اوس لري؟ د هغه پر کرکټر ئې اغېز څه دئ؟
- له څه شي سره ئې زړه لګېږي؟

- له څه شي اندېښنه لري؟
- له څه شي زيات ډارېږي؟
- کومې ښې خاطرې لري؟ کومې بدې؟
- په ژوند کې تر ټولو ښه پېښه ئې کومه ده؟ تر ټولو بده؟
- غټ راز ئې څه دئ؟
- کومه کلمه ده، چې د هغه د شخصيت دقيق تعريف ګڼل کېدای سي؟" (۱۲: ۷۳).

**د کرکټرونو عمومي توپير ته پاملرنه:**

په عمومي ډول انسانان د عمر، خوی، دماغي حالت، فطري او غير فطري کيفيت له مخي توپير سره لري. لکه څنګه چې د ناول د کرکټرونو د ظاهري ښې او داخلي نړۍ معرفۍ ته اړتيا ليدل کيږي، همدا رنګه د يو ناول بېلابېل کرکټرونه بايد د عمر، خوی، دماغي حالت او نورو اړخونو له مخي توپير هم سره ولري.

**د کرکټرونو د لباس تناسب:**

د کرکټرونو ښه او لباس د هغه له ذهني او ټولنيز حالت سره سم ټاکل د غوره کرکټر کښنې يو بل اصل دئ. په ربښتيني ژوند کي هغه کرکټرونه چي په ذهني او عصبي تکليف اخته وي، عموماً ډنګر او کمزوري وي، همدارنګه هغه کسان چي ژوند ئې هوسا او سوکاله وي، هغوی اکثريت چاغ او مزي وي، هغه کرکټرونه چي په روحي ډول کړېږي، ښايي لباس ئې د سمو او روغو کسانو په پرتله ډېر منظم او ستره نه وي. لنډه داچي ليکوال بايد دې ته هم متوجه وي، چي د خپلو کرکټرونو لباس او فزيکي ښه د هغو له ذهني، اخلاقي او نورو اړخونو سره سمه انتخاب کړي.

**د کرکټرونو تدريجي تکامل:**

د کرکټرونو تدريجي تکامل د ناول د کرکټر کښنې يو مهم ټکی دئ. دا هغه اصل دئ، چي د دې ژانر کرکټر کښنې له ډرامې او لنډې کيسې سره توپير ور کوي، ځکه د ډرامې او لنډې کيسې ساحې د ناول په نسبت ډېري تنګې وي. په دې ژانرونو کي د زمان او مکان د حدودو د کموالي او تنګوالي له امله د دې ظرفيت نه وي، چي د يو کرکټر ذهني او اخلاقي تغير په کښې را ونغاړل سي.

دا چي ناول د زمان او مکان له مخي پراخه لمن لري، نو د ادبياتو نورو ژانرونو دا درونډ بار د ناول پر اوږو ور اچولی دئ. "لوټز په ډېره ساده ژبه د دې خبري يادونه کړې ده. نوموړی وايي، د کرکټر تدريجي تکامل د ناول ليکنې لومړی اصل دئ... د انسان له عمر سره په بدن او له بدن سره په افکارو، احساساتو او جذباتو کي تغير او تکامل رامنځ ته کيږي. دا يو منل سوی اصل دئ. که په يو کرکټر کي دا اصل نه وي، نو د هغه په ژونديوالي کي شک پيدا کيږي." (۱۰: ۶۹).

هر ليکوال حق لري، چي له خپل کرکټر څخه شيطان يا پرښته جوړه کړي، خو دلته دې خبري ته ځانګړې پاملرنه په کار ده، چي کرکټر بايد په اول سر کي عادي شخص وي او وروسته ئې د منفي يا مثبت شخصي کېدو له پاره زمينه سازي وسي. ليکوال بايد هغه خبري او لاملونه په تدريجي ډول وړاندي کړي، چي له کرکټر څخه ئې لنډغر جوړ کړی دئ.

"د کرکټر د تدريجي تکامل اصلي معنٰی دا ده، چي د کرکټرونو فطري او لومړني خصلتونه په داسي ډول پرلپسې وړاندي کړل سي، چي د هغو د

اسلافو، فطرت، ټولنيز چاپېريال اغېزي په کښې څرګندي وي." (۱۲: ۷۰).

**مناسبه نوم اېښوونه:**

د کرکټرونو نوم اېښوونه که څه هم عادي چاره معلومېږي، خو که ليکوال دغه کار ته سمه پاملرنه ونه کړي، نو ښايي پر کرکټر ليکنه ئې منفي اغېز وکړي. ليکوال کولای سي، چي پر خپل کرکټر هر ډول نوم کښېږدي، خو دی بايد يوه خبره په پام کې ولري، چي آيا د کرکټر نوم ئې د لوستونکي له پاره پارونکی دئ، که نه؟

د داستاني آثارو کره کتونکي د کرکټر د نوم اېښوونې له پاره درې ټکي د يادوني وړ بولي او وايي چي د کرکټر نوم بايد له دې درو ځانګړنو څخه يوه ولري:

"۱– کرکټر څواکمن کړي

۲– بې غرضه وي

۳– د کرکټر له شخصيت سره متضاد وي" (۳۹: ۹۰).

البته د پورتنيو درو ځانګړنو له جملې څخه د لومړۍ په اړه دا يادونه هم کوي، چي له دې خبري څخه هدف دا نه دئ، چي يو کرکټر شتمن وي، نو نوم دي ئې (حاجي خان محمد) وي.

کره کتونکي سپارښتنه کوي، چي په دې برخه کي ليکوال بايد له ډېر مهارت څخه کار واخلي او داسي نوم د کرکټر له پاره وټاکي چي هم د دغه د شخصيت په را پېژندلو کي رول ولري او هم د لوستونکو په ستر ګو ډېر ورننه نه وځي.

په رښتيني ژوند کي د ډېرو خلکو نومونه بې غرضه وه، يعني چنداني د هغه د شخصيت په معرفي کولو کي رول نه لري. له دې امله که د ناول د کرکټرونو نومونه بې غرضه کښېښوول سي، نو هم بد نه ښکاري.

د بېيمه کټګورۍ نومونه ډېر کله د طنز له پاره کارېږي. د بېلګي په ډول د نجيب محفوظ د يوې کيسې د کرکټر نوم (سالم عبدالتواب) دئ، خو دغه کرکټر تر دې اندازې په اروايي ناروغي اخته وي، چي آخير خپله خپل ځان وژني. په دې نومونه کي د (سالم) صفت نوم او د ده اروايي ستونزه سره متضاد دي، خو دا چي ليکوال د طنز په خاطر ورته انتخاب کړی دئ، نو کيسه ئې مالګينه کړې ده.

**د کرکټر کښني پر وخت د پاملرني وړ درې ټکي:**

"کره کتونکي سپارښتنه کوي، چي د کرکټر کښني پر وخت دريو ټکيو ته پام کوئ:

لومړی: کرکټرونه بايد په خپل رفتار او کردار کي ثابت وي. داسي نه وي، چي له ورته پېښو سره يو ځل يو ډول چلند وکړي او بيا بل ډول؛ مګر په کيسه کي پېښي د هغه پر روحياتو اغېز کړی وي...

دوهم: کرکټر چي څه کوي بايد انګېزه ولري. که د کيسي داتل په خوی کي څه بدلون راځي بايد موجه دليل ورته ولرو. کله ناکله ښايي د کيسې د لوستو پر مهال دليل ته د لوستونکي پام نسي؛ خو د کيسې په پای کي په کار ده لوستونکی قانع سوی وي، چي هو داسي بايد سوي وای او کرکټر بايد داسي کړي وای.

دریږم: کرکټر باید د منلو وړ وي، داسې چې نه فرشته وي او نه شیطان؛ ځکه چې انسان دواړه لري ښه او بد."(۱۴: ۶۰).

**د ناول په عظمت کې د کرکټرونو د مثالیت رول:**

"زما په نظر ژوند ته له نویو زاویو کتل او له ستمونو سره ئې په نوي انداز مبارزه کول د مثالیت او آیډیل معنیٰ لري.

په نړۍ وال ادب کې مثالیت ځانګړی ارزښت لري. د نوبل ادبي جایزې د ورکړې پر مهال هم دې ټکي ته ځانګړی ارزښت ورکول کیږي، ځکه چې د الفریډ نوبل له وصیت سره سم په ادبیاتو کې دغه جایزه باید هغه ادیب ته ورکړه سي، چې د انسانیت د یوې ستري ګټې پر مخښونکي وي او یا پر یو مثالي یا ایډیال لوري روان وي.

که څه هم د نوبل د وصیت مثالي لوری یو مبهم ټکی وو، خو د سویډش اکاډمۍ مسئولینو په بېلابېلو وختونو کې د دې ټکي د تعبیر له پاره جلا، جلا تعریفونه وړاندي کړل. □په لومړي پړاو کې د نوبل د وصیت یاد سوی (مثالي لوري) یو لوړ او قوي ایډیال وبلل سو. د همدې معیار پر بنسټ بائیورنسن (Bjornson)، کپلنګ (Kipling) او پال هیس (Paul Hesse) ته جایزې ورکړل سوې....

په ۱۹۲۱م کې د (نوبل) د وصیت دغه جز له سره تعبیر سو، دا ئې پراخ دله انسانیت وباله او په دې ډول د اناطول فرانس او جارج برنارډشا له پاره د جایزې دروازه خلاصه سوه... وروسته اکاډمۍ هڅه وکړه، چې د نوبل د وصیت د مثالي لوري تعبیر تر وسه – وسه په پراخه معنا وسي. د همدې هڅې په نتیجه کې کمیسون دا ومنله، چې سنجیده ادب هغه دئ، چې یو انسان نه یوازې له خپل حالت څخه اګاه کړي، بلکې د هغه ژوند هم ور ښه کړي.□ (نوبل جایزه وړونکي ادیبان. لیکوالان: خالد اقبال یاسر او محمد ارشد رازي. ترجمه: ن.ا. آریا)

"اردو ژبې لیکوال ډاکټر کامران کاظمي په خپله یوه مقاله (په اردو کې ښه ناولونه ولې نه دي، لیکل سوي؟) کې هم دې ټکي ته اشاره کوي او وایي، چې «... د اکثرو نوبل جایزه وړونکو ادیبانو آثار (پنځوني) لوستونکي دې ته هڅوي، چې د ژوند په اړه نوی فکر وکړي....»

په یو اثر کې د مثالي لوري وړاندي کول، د یو ستر اثر او سنجیده ادیب ځانګړني دي. د ډاکټر کامران کاظمي په وینا سنجیده ناول نګار هغه څوک دئ، چې د عالي ادب د تخلیق په هڅه کې وي. عالي ادب د ټولني ذهني او ټولنیزه سطحه لوړوي.

زما په نظر پر پښتني ټولني د ادب د ناجوت اغېز یو لامل ښایي دا هم وي، چې زموږ عالي داستاني ادب کمزوری دئ او آثار مو د مثالي لوري او آیډیال له رنګینیو بې برخې دي."(۱۵: ۵۴) په دې برخه کې زموږ بله ناخواله دا ده، چې تر اوسه لا هم زموږ په ادب کې دې ډول مسایلو ته پاملرنه نه کیږي. زموږ کره کتنې لا اوس هم تر ډېره ځایه د اثر پر چوکاټ راڅرخي. د دې علت ښایي دا وي، چې موږ تر اوسه لا هم زموږ ډېر لیکوال او شاعران د خپلو آثارو او هنري پدیدو پر چوکاټونو برلاسه سوي نه دي.

**په ناول کې د کرکټرونو د بغاوت ارزښت:**

"نړۍ وال کره کتونکي په یو ادبي اثر کې بغاوت ته هم په لوی ارزښت قایل دي. د ادبي آثارو د کرکټرونو بغاوت هغه ښګښه ده، چې د یوې ټولني د

فکري، ټولنيز، سياسي، علمي او فلسفي پرمختګ جمود ور ماتوي او د يوې ټولني خلکو ته د پرمختګ نوي لارې او طريقې په لاس ورکوي....

د پښتو د اکثريت ناولونو کرکټرونه د خپلې ټولنې له ټولنيزو، کلتوري، طبقاتي، جنسي او ناسمو مذهبي ستمونو او ناخوالو ځخه کړېږي، خو زما له معلوماتو سره سم داسي کرکټرونه ډېر په کښې کم دي، چې د دې ستمونو پر ضد بغاوت وکړي، او لوستونکي ته پر دې ستونزو د برلاسه کېدو لارښوونه وکړي په کرکټرونو کې د بغاوت د عنصر کموالی د پښتو ناولونو بله لويه کمزوري ده.

زه په دې باور يم، چې که د پښتو داستاني ادب له فني اړخه له نړۍ وال ادب سره پرتله سي، نو ښايي په ځينو برخو کي د پرتلې وړ وي ورسره، خو دا چې زموږ په داستاني ادب کې د بغاوت اړخ ډېر کمزوری دئ، نو له دې امله له نړۍ وال ادب ځخه پر شا پاته دئ."(۱۵: ۵۴).

دلته بيا هم خپلي پورتنۍ خبري ته ورګرځو او وايو، چې پښتو معاصر يا په بله وينا نوی ادب او په ځانګړې ډول ناولونه له مفکوروي اړخه د نوري نړۍ تر ناولونو ډېر وروسته پاته دي. دا چاره به تر هغو دوام لري، تر ځو زموږ ناول ليکونکي په خپلو ناولونو کې د مفکورې ارزښته ته پاملرنه ډېره نه کړي.

کله چې يو ليکوال وغواړي په خپلو ناولونو کي مفکوروي اړخونو ته پاملرنه ډېره کړي، نو دی اړ دئ، چې د دې چاري د عملي کولو له پاره له باغي کرکټرونو کار واخلي. داسي ياغي کرکټرونه چې هغه د ټولني منفي سنتي چوکاټونه مات کړي او لوستونکو ته نوې مفکوره ور ولېږدوي.

---

**ماخذونه:**


۱- بخاري، سهيل. (۱۹۶۰م.ل) اردو ناول نگاري. لاهور. مکتبه جديد.

۲- داد، سيما. (۱۳۸۵ل.ل) فرهنگ اصطلاحات ادبي، تهران، انتشارات مرواريد (چاپ سوم).

۳- بيگم، مه نور زماني. (۱۹۸۸م.ل). کرشن چندر کی ناولو می نسوانی کردار. حيدرآباد. نيشنل پائين پرنټنګ پريس.

۴- هاشمي، څېړنوال سيد محی الدين. (۱۳۸۹ل.ل) د نثري ادب ډولونه. جلال آباد، وحدت خپرندويه ټولنه.

۵- فارسټر، اي، ايم (ليکوال). قاسمي، ابو الکلام (ژباړن).(۲۰۰۲م.ل) ناول کا فن، علي ګړه، ايجوکيشنل بک هاوس.

۶- فاروقي، ډاکټر محمد حسن او هاشمي، ډاکټر نورالحسن. (۱۹۹۴م. ل) ناول کيا هی؟. لکنهو؛ دانش محل.

۷- عبيدي، علي رضا. (۱۳۹۴ل.ل) فن رمان نويسي، تهران، موسسه انتشارات نگاه.

۸- يونسي، ابراهيم. (۱۳۹۵ل.ل) هنر داستان نويسي. تهران. موسسه انتشارات نگاه.

۹- ښکلی، اجمل. (۱۳۹۴ل.ل) ادبي زاويې. ګرديز. علمي خپرندويه ټولنه.

۱۰- سروري، عبدالقادر. (۲۰۱۱م.ل) کردار اور افسانه. لاهور. تخليقات پبليشنګ هاوس.

۱۱- القباني، حسين (ليکوال)، پسرلی، اجمل (ژباړن). لنډې کيسې به څنګه ليکو؟. دانش خپرندويه ټولنه.

۱۲- عمر، محمد آصف. (۱۳۹۴ل.ل) ښه ناول وپېژنئ!، جلال آباد، مازيګر کتاب پلورنځی.

۱۳- Green George & Kremer Lizzy. (۲۰۰۷) How to Write a Novel and getting published. England. John Wiley & Sons, Ltd.

۱۴- پسرلی، اجمل. (۱۳۸۸ل.ل) نجيب محفوظ څرنګه کيسه ليکي؟. کندهار. سالنګ کتاب خپرونکي.

۱۵- آريا، نثاراحمد. (۱۳۹۵ل.ل) کندهار مجله د دلو- حوت ګڼه. په عاشو لمر او باران اوري ناول کي د شاهکارۍ نخښې (مقاله)، کندهار، د اطلاعاتو او فرهنګ رياست.

**محمد ابراهیم سپېڅلی**

# مور

د څو شپو پرله پسې واورې اورېدو هوا خورا يخه کړې ده، هر څوک هڅه کوي مازيګر وختي کور ته ولاړ سي.

زموږ د نان وايي مخ ته خامه سړک تېرسوی دئ، د موټرانو زيات تګ راتګ واوره ويلې کړې ده، هر څوک چې په پښو له دې ځايه تيرېږي، نو پايڅې راپورته کړي.

زه د نان وايي پر پارچال ناست يم تودې ډوډۍ خرڅوم بيامې هم تر نورو ورځو زيات يخ کيږي.

د واورې اورېدو راهيسې زموږ د نان وايي کار هم زيات سوی دئ، ځکه د اکثرو کورنو نغريان واورې او باران لانده کړي دي، په ځينو کورونو کې ښځمنې د زيات يخ له لاسه پر تبخې ډوډۍ نه سي پخولای يا يې نه پخوي.

پلار مې ډېر خوشحال دئ، ځکه په دې ورځو کې يوه ډوډۍ هم نه پاته کيږي او ان ځيني وخت موږ ته لا د خوراک ډوډۍ پاته نه سي.

يخ او د ټولې ورځې ډوډۍ خرڅولو نن سخت ورې کړی يم، توده ډوډۍ مې راواخيسته د ختېن او د لوشو ډک سړک په منځ کې کښېناستم لويه ګوله مې له تودې ډوډۍ څخه راجلا او په لوشو مې غوټه کړه، ګوله ښه په لوشو ولړل سوه او ميده ميده شګې هم ورسره ونښتې.

ګوله مې په خوله کړه نابېره مې پر ميده ميده شګو غاښونه وبرښېدل او له خوبه راويښ سوم.

بشپړه يوه اوونۍ مې دغه خوب تکرار ليدی، خو مور مې ناروغه وه او نورچاته مې حال نه وايه.

يوه اوونۍ تېره سوه او يوسهار مشري خور له خوبه راويښ کړم په ژړا يې راته وويل: (مور مړه سوه !!)

په هغه ګړي مې ډېره خوابده نه سوه، ځکه چې د مور کې اوږدې ناروغۍ ټول په تکليف کړي وو، خو ورځ تر بلې مې ژوند تريخېدی، د ورونو، ورېندارګانو او آن د پلار په چلند کې لاهم لوی توپير راغلی.

د شپې تېرېدو ځای رابانديې ودرېدی، د خوراک ځای مې ورک سو، د مکتب کتابونه مې چا په خونه کې نه پرېښوول او د غاړې کالي به مې په يوه – يوه نيمه مياشت کې هم نه بدلول.

خواپاکې هلک يودم خيرن سو، د ښوونځي تکړه زده کوونکی يودم په درسونو کې پاته سو او خوشحاله ماشوم د ژوند اوږدو ناخوالو په مخه کړ.

ورځ، به په يو ډول تېره سوه، خو ماښام ته به مې وار خطاء وو، چې بيابه د چا سره په خونه کې بيدېږم، يوازې بېرېدم او له دې سره د غمونو اوږدې لړۍ شروع سوې.

هغه د تودې ډوډۍ خوب مې رښتيا سو، ټول دوستان مې درلودل، ليکن يوه مور کې نه وه، نو ځکه مې د خوارۍ خولۍ پرسر سوه.

زموږ د لومړۍ ټولګي د پښتو په کتاب کې يوځای داسې ليکلي و: (بې علمه ژوندون ګران دئ.) ما به د اوښکو په بدرګه دغه جمله داسې بدله کړه: (بې موره ژوندون ګران دئ.)

سردارولي پښتون زوی

# د امیر امان الله خان په دوره کي پر کورنیو تولیداتو ټینګار

زما برداشت دا دئ، چي د امان الله خان د واکمنۍ لومړۍ لسیزه د افغانستان د معاصر تاریخ نیمګړی څپرکی جوړوي، نوموړي وکولای سوای، د قدرت پر مهال هغه ګامونه پورته کړي، چي زموږ نن او پرون سره تړي، یو له دغو څخه دا دئ، چي اروابناد امان الله به د کورنیو تولیداتو د غوړېدو لپاره ځانګړې او ګټوره تګلاره لرله.

امان الله خان له ملي جامو سره په ځانګړې مینه درلودلو کي بې ساري وو، دی به د اولسي جامو په اغوستلو لکه کمیس او پرتوګ، پګړۍ، خولۍ اوپوستین کي چایخانو اوسماوارونو ته تلی او له عامو خلکو سره به خوښي او غم شریک وو، نوموړی چي یو ښایسته، میانه ونه یاقد، ګردی مخ، روښانه توري ستر ګي چي چنداني به نه غوسه کېده؛ لرله، وطني کالو به په اولسي خلکو کي لا ځلاوه.

امیر به په بازار کي ګرځېده، چي خلک پخپله ووینې چي د وطني تولیداتو سره څه کوي، دا چي افغانستان خپل تولید نه لاره نو امیر به تل په دې فکر کي وو چي څنګه کورني محصولات غوروالی پیدا کړي. یوه ورځ ئې په بازار کي یو هندو ولید چي پخپل دوکان کي ئې پلتې ئې وهلي او شاوخوا ئې د وربښمینو لونګیو توکران ځړېده، امان الله خان چي دا لونګۍ ولیدې؛ د هندو دوګان ته ورغلئ او ټولي ئې سره کوټه کړې. هندو ئې وراخطا ننداره کوله او امیر د کابلي اورلګیت په وسیله لونګیو ته اور ورته کړ، هندو ته ئې مخ واړاوه او د سوځول سوو لنګیو دوه برابره پیسې ئې ور کړې او هم ئې اخطار ورکړ، چي وروسته له دې به یوازي افغاني محصلات خرڅوي[۲].

---

. [۲]داکتر عبد الغنی (جلالپوری) ۱۸٦۴-۱۹۴۳ع کال. عبد القدیر نجفی، مکتبه معارف نجف: (ملتان: روډ لاهور،۱۹۸۹ع)

که څه هم د ښځينه کاليو ګنډونکو په کابل کې هغه ډول کالي ګنډل، چې د پاريس له نارينه ګنډونکو سره ئې ښه سيالي کولای سوای خو د امير د کورنۍ غړو او درباري کسانو به داخلي توکو ته، چې د افغاني ګنډونکو لخوا ګنډل کېده؛ په خوار نظر کتل، له همدې امله به امان الله خان له ځان سره د سر جوړولو يوه وړوکې بياتي [غيچي] اګرځوله. کله چې به ئې د کوم خپل يا د پاچاهۍ بل کس بهر کې جوړ سوي کالي په تن کې وليده، په پټه به ئې د هغه جامې په بياتي له کاره ويستلې[۴].

چې وطني جوړ ئې نه لاره پرې کړې، څه موده وروسته هغه د کابل موچيانو ته هم امر وکړ، چې داسي بوټونه دي نه جوړوي چې کټ مټ د پارسي بېړيو ښه لري او څوکي ئې تېرې وي بلکې اروپايي ډوله بوټان دي تيار کړي، چې د افغانستان د اوبو و هوا سره سم وي.

د ۱۳۰۳هـ ش کال د پغمان په لويه جرګه کتاب [رويداد لويه جرګه دارالسلطنه] نومي کتاب کې يو سرليک د [تاکيد پوشيدن البسه وطني] تر نامه لاندي ليکل سوئ، چې پکښې ټينګار کيږي:

خای: اماني ليسه | نېټه: ۱۹۲۸ع | سرچينه: امان افغان جريده | عکاس: عبدالواحد بهره | عکس: امير امان الله امانيه مکتب کې...


۳۵۵

تاکید پوشیدن البسهٔ وطنی

اعلیحضرت

يوه ورځ جنرال محمود سامي [ترکي الاصله عمومي قومندان] چې ترفيع ئې کړې وه د امان الله دفتر ته په داسي حال کي راغلی، چې وطني کالي او څو کتاره پټې او مډالونه ئې بند کړي وه. امان الله په بياتي هغه پټې

«اعلحضرت: پدې جرګه کي مي ستاسو ډېر لحاظ وکړ؛ ځکه چې تاسو هر يو بهرني ټوکر اغوستی او دلته راغلي ياست. دا په داسي حال کي ده، چې له ډيري مودې راپدې خوا د هيواد توليد ودي لپاره ما دا لاره غوره کړې چې هر څوک مي که وليد چې بهرنی ټوکر ئې په ځان وي په خپلو لاسونو هغه څيري کوم.

---

[۴] ريه ټالي ستيوراټ، اور په افغانستان کې، ژباړونکی: محقق مرستيال عبدالحسيب حکيمي. (کابل: ميوند خپرندويه ټولنه ۱۳۸۳ل)

تاسو وګورئ، چي نن د دولت مامورين پر ته د وطن له پاک او ستره ټوکره بل څه نه آغوندي. پدې لړ کي له هراتي او ترکستاني هيوادوالو چي وطني ټوکر ئې اغوستی او غونډي ته راغلي مننه کوم. که ستاسو هر يو له هر ځای څخه چي راغلي ياست؛ د هماغه ځای ټوکر مو آغوستی وای څومره به ښه ښکارېدلاست چي د هر ولايت ټوګر مو موږ ته راښوولی وای او څومره به در څخه خوښ سوی وای، بايد په راتلونکې لويه جرګه کي خپل وطني پوښاک واغوندی او دلته راسئ. بيا هم وايم چي په دی اړه مي ستاسو ډېر لحاظ کړی، چي تر اوسه مي د هيڅ چا لحاظ ندی کړی...[۵]»

د اماني دورې [ارشديه ښوونځي لومړي ټولګي لپاره ادبي منتخبات] کتاب يوه ليکنه چي له [امان افغان] څخه را نقل سوې، ليکي: "امير له خولی نيولې تر بوټانو او ټولو جامې له کورنيو او وطني توليداتو اخلي. ډېره هڅه کوي چي کورني توليدات د خلکو تر منځ رواج کړي. که د وزيرانو او يا د افغانستان اوسېدونکي او يا ترکانو پر تن اروپايي جامې ووينې سم دستي هغه شکوي او د همدې کار لپاره تل خپل جيب کي غچې ګرځوي. په کابل کي هم که د پرديو هيوادونو سفيران وطني ګوګرد و نه کاروي په ډېر مهارت سره پر هغوی نيوکه کوي..."

حبيب الله قلم مل

## مظلومه ښځه په مسجد کي

د سلام تر ګرځېدلو وروسته دصفو له شا څخه مي ديوې ښځي ږغ واورېدئ، چي ويل ئې کونډه يم او کوچني يتيمان راپاته دي دکرايې په سرای کي اوسېږم. دکور مالک راته وايي چي د څو مياشتو کرايه که ترمخه پريوه ځای رانکړې دکور سامانونه دي له کوره دباندي درغورځوم . خدای جل جلاله سته زړه مي ډېر درد وکړئ. له ځانه سره مي وويل چي څومره ظالمان خلګ سته. کله چي له مسجد څخه راووتم، يو کس پرلار راسره يو ځای سو بې اجازې او بې اختياره ئې په خبرو شروع وکړه، په دنيا کي هم څومره سخت زړي خلګ سته ته وګوره د دې مظلومي ښځي سره څومره ظلم کيږي، ما هم د ده د خبرو تائيد وکړه او له ځانه سره مي وويل چي کاش چي د سرای مالک دغه سړی وای ځکه خبري ئې دومره له مهربانيه ډکي وې تابه ويل اوس به ئې د دې غريبې پر حال پر – پر اوښکي له سترګو راسي، مايي د خبرو په جواب کي وويل: چي داسي ظالمان وي خود به داسي توره شپه وي، موږ هر وخت له خدايه د رحم غوښتنه کوو، خو ته پوهېږې، چي کله يو بنده پر بل بنده رحم ونه کړي خدای جل جلاله پر هغه کس هيڅکله نه رحمېږي، د خبرو په جريان کي سره جلا سوو، دی پر خپله لار ولاړئ او زه پر خپله، کله چي ماځيګر له کاره څخه دکور وخواته روان وم که ګورم چي په يوه کوڅه کي هغه ښځه چي سهار ئې په مسجد کي دخپلي بې وسی ږغ کړي وو، په ژړا سره داويل چي ولي دومره ظلم راسره کوې په دې يخ او ژمي کي زه چيري ولاړه سم. داسي مه کوه ! يو څو ک يي دکور په دروازه کي په داسی حال کي ولاړ وو، چي کالي او دکور نور سامانونه ئې کوڅې ته راغورځول او ويل ئې چي تاسي نو شرم نه لرئ، غوړای ټول عمر په مفت سرای کي و اوسېږي، کله چي د سړي مخ زما وخواته راواښت هغه سړي وو، چي له مسجد څخه د راوتلو پر وخت يي بحث راسره کوی او ويل ئې چي په دونياکي دومره ظالمان سته، د دې غريبي پر حال هيڅ نه رحميږي.

---

*وګورئ، رويداد لويه جرګه، دارالسلطنه کابل، تحرير: غلام محمد کاتب، ۴۲۲ مخ

شبیر احمد

# بېځایه بحثونه

افغاني ټولنه داسي جوړه ده چي د جمعې په شپه او ورځ یې، یا دې ته ورته د نورو رخصتیو او یا د خوشحالیو په ورځو کي ځوانانو او زاړه سره راټولېږي، په لومړي سر کي خبره ډېر عادي او په زړه پوري وي، خو د مجلس منځ ګرم او پای یې بد سي ټول داسي ساړه سره ولاړ سي لکه پر اور چي اوبه توی کړې او یا هم کله چي د اور بوټي ایره سي. بنایسته باندار په خوابدي بدل سي او زړونه د میني پر ځای یو بل ته د کینې ځای ونیسي.

ډېر وختونه خو داسي هم راغلي چي په یادو مجلسونو کي خبره تر لاس و ګرېوانه ورسېږي، آن ځیني خو چي ډېر احساساتي وي خلک هم د دین څخه وباسي او بالعکس ځیني بیا خپله ځان د دین څخه وباسي او داسيووایي: د دې اسلام څخه خو زه تېرم!!! زه نور کافر یم!!! العیاذ بالله!

معمولاً زموږ په ټولنه کي دوه ډوله بحثونه کېږي: دیني او سیاسي.

اوس په دین کي باید هغه کس خبري وکړي چي په دیني چارو پوه او د خلکو اذهان درک کولای او هغوی ته صحیح جوابونه ویلای سي، د خلکو شبهات لیري کولای سي، نه دا چي د خپلو خبرو په نتیجه کي خلک نور هم شکمن کړي. مګر موږ او تاسو وینو چي د یوه کس به خپل لمونځ هم سم زده نه وي، چي کله پوښتنه ورځخه وسي چي د لمانځه شرطونه څو دي؟ یا د لمانځه مفسدات؟ او دې ته ورته نوري عادي پوښتني، نو په جواب کي درته وایي چي زه خو ملا نه یم او که چیري بیا د یوه کس په اړه وپوښتل سي چي فلانی کس څنګه سړی دئ؟ تا به سوال نه وي پوره کړی چي جواب به دي تر غوږو سي: "ایله ئې کړه! چنداني سړی نه دئ، ډېر بد سړی دئ، هغه خو مسلمان لا نه دئ، په ایمان کي ئې شک دئ، لوی ګناهکار دئ" او دې ورته نوري فتواوي به ورباندي لګوي. دا ډول په اوس وخت کي د هغه دیني مسائلو په لړ کي چي ډېر یې بازار ګرم دئ، یو هم د دوولسمي مسئله ده. اوس نو د یوه کس چي په دیني برخه کي سویه دومره ټيټه وي، آیا هغه ته ښکار ده چي په دیني مسائلو کي بحث وکړي په تېره بیا په اختلافي مسائلو کي؟! هیڅکله نه!

همدا ډول په سیاسي اړخ کي باید هغه کس خبري وکړي، چي لوړي او ژوري یې لیدلي وي، څه نا څه لوستی وي، مګر یو کس چي معلومات نه لري حتا خپل روزمره ژوند هم نه سي اداره کولای، په خپل کاروبار کي هم ناکامه وي او لږ څه مطالعه هم و نه لري او بیا هم په سیاسي بحثونو کي برخه اخلي دا به نو

کوم عقل ومني؟! د بېلګي په توګه ډېر وختونو موږ او تاسو په سیاسي بحثونو کي د يو وفات سوي واکمن په اړه خبري کوو، مثلاً: د هغه په اړه ممکن دا دوه نظرونه شتون ولري: ځيني په دې اند وي چي نوموړی سیکولر دئ، ځيني بيا د دې برخلاف نوموړی يو اتل معرفي کوي. اوس که دقيق سو او دواړو نظريو ته ښه پاملرنه وکړو، آيا دغه واکمن چي اوس مړ دئ که هغه سیکولر وي او که نه وي، آيا په ساعتونو بحث او ترخې خبري اتري سړی و دې پايلې ته رسوي، چي نوموړی سیکولر دئ يا نه دئ، که هغه سیکولر سي نو اوسنۍ ټولني ته ئې څه زيان رسېږي او که سیکولر نه سي نو اوسنۍ ټولني ته ئې څه ګټه رسېږي؟ په عامه اصطلاح د مړو څخه شيطان هم بېزاره وي، نو بيا ولي موږ همېشه په مړو کي بحثونو کوو او پرته د خولې د خوند د خرابوالي څخه هيڅ هم په لاس نه راځي.

دا چي دا ډول بحثونه به ګټه ولري که زيان؟ راځو په دې اړه د اسلام لارښووني تر مطالعې لاندي نيسو، چي په دې اړه اسلام موږ ته څه لارښوونه کوي؟

الله – جل جلا له – د سورة لقمان په ۶ – ۷ آيتونو کي فرمايي:

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَشْتَرِي لَهْوَ الْحَدِيثِ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَيَتَّخِذَهَا هُزُوًا أُولَئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُهِينٌ، وَإِذَا تُتْلَى عَلَيْهِ آيَاتُنَا وَلَّى مُسْتَكْبِرًا كَأَنْ لَمْ يَسْمَعْهَا كَأَنَّ فِي أُذُنَيْهِ وَقْرًا فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ. (سورة لقمان: ايت ۶–۷)

ژباړه: ځيني هغه خلک دي چي، بېځايه خبري (د الله – جلا جلا له – څخه غافله کوونکي خبري) اخلي تر څو د الله تعالی د لاري څخه يې ليري کړي او دغه حقه لار په ټوکو نيسي، همدغه کسانو لره سپکوونکی او د ذلت عذاب دئ. کله چي پر دوی

باندي زموږ آيتونه لوستل کېږي نو دوی داسي وګرځېږي ګواکي هيڅ يې هم نه دي اورېدلي، ګويا د دوی په غوږونو کي درووند والی (کوڼ والی) دئ، پس دغه کس ته په دردناک عذاب سره زېری ورکړه.

هر هغه کار چي انسان د ضروري کارونو څخه په غفلت کي اچوي، هغه ته لهو وايي. دا ډول ځيني وختونه داسي کارونو ته هم لهوه وايي چي څه فايده نه ترې اخيستل کېږي محضي د وخت تېرول او د زړه تېر ايستل وي. (معارف القرآن، ج: ۷، ص: ۷۳)

محمد سيد الطنطاوي په خپل تفسير "الوسيط" کي ليکي:

هر هغه خبره چي د خير تمه ترې نه کېږي، هغه لهو الحديث دئ. (التفسير الوسيط، ج: ۱۱، ص: ۱۱۲)

همدا ډول دوکتور وهبة زحيلي په خپل تفسير "المنير" کي ليکي:

"لهو الحديث" هر هغه شي ته ويل کېږي چي انسان د خپل هدف څخه غافله کوي، که هغه کيسې وي، که ټوکي وي، که بېځايه خبري او يا داسي نور څه وي. (التفسير المنير، ج: ۲۱، ص: ۱۳۱)

همدا ډول په صحيح مسلم په ۴۴۶۰ شمېره حديث کي راځي:

حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِى شَيْبَةَ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ ابْنُ عُلَيَّةَ عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ حَدَّثَنِى ابْنُ أَشْوَعَ عَنِ الشَّعْبِىِّ حَدَّثَنِى كَاتِبُ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ كَتَبَ مُعَاوِيَةُ إِلَى الْمُغِيرَةِ اكْتُبْ إِلَىَّ بِشَىْءٍ سَمِعْتَهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم–. فَكَتَبَ إِلَيْهِ أَنِّى سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– يَقُولُ « إِنَّ اللَّهَ كَرِهَ لَكُمْ ثَلاَثًا قِيلَ وَقَالَ وَإِضَاعَةَ الْمَالِ وَكَثْرَةَ السُّؤَالِ ».

ژباړه: شعبي وايي: ما ته د مغيرة بن شعبة رضي الله عنه کاتب وويل: حضرت معاوية رضي الله عنه و مغيرة بن شعبة رضي الله عنه ته يو ليک راولېږئ او دا

غوښتنه يې څني کړې وه چي ما ته داسي څه ولیکه چي تا د رسول الله – صلی الله علیه و سلم– څخه اورېدلي وي. نو مغيرة بن شعبة رضي الله عنه هغه ته وليکل: ما د رسول الله – صلی الله علیه و سلم– څخه اورېدلي دي: بېشکه الله تعالی ستاسو لپاره درې (۳) کارونه ناخوښ ګڼي: بېځایه خبري اتري، د مال ضائع کول او ډېر سوالونه کول.

د پورتني حديث شريف په تشريح کي مفتي محمد تقي عثماني په خپل کتاب "تکملة فتح الملهم" کي داسي ليکي:

د پورتني حديث څخه د هغه بحثونو او مناظرو بدي معلومېږي په کوم کي چي ګټه نه تر سترګو کېږي، يا د هغه بحث هدف يوازي د خپل علم او تجربې ښوول وي، نه د حق ثابتول. زموږ په پېر (وخت) کي اکثره مناظرې او بحثونه همداسي دي، چي د بحث کوونکو مقصد دا نه وي چي حق ته غاړه کښېږدي، بلکي مطلب ئې دا وي چي مقابل لوري ته خپل ځان لوړ وښيي او ځان و مقابل لوري ته زيات پوه وښيي (العياذ بالله). همدا هغه بحثونه دي چي علماوو بد ګڼلي دي او په دې اړه امام مالک بن انس رحمه الله فرمايي: ځان ښوونه د علم نور له منځه وړي. (تکملة فتح الملهم بشرح صحيح مسلم، ج: ۲، ص: ۵۱۴)

خلاصه دا چي د بېځایه بحثونو نتيجه په دنيا کي خپګان، د وخت ضائع کول او په آخرت کي د عذاب وېره ده.

خپلي خبري د يادو دوو مسئلو د حل لارو په ويلو سره پای ته رسوم:

په ديني مسائلو کي د بحث کولو څخه ځان وساتئ، په خاص ډول د ښوونځي او مدرسې زده کوونکي او د پوهنتون محصلين؛ څکه د زده کړي او تحصيل دوره د مناظرې او بېځايه بحثونو لپاره ښه وخت نه دئ. که احياناً د داسي کس سره مخامخ سئ، چي هغه په ديني مسائلو کي بحث درسره کوي په داسي حال کي چي هغه خپله هم معلومات نه لري، نو په لومړي قدم کي د بحث موضوع واړوئ، که چيري دا کار ممکن نه وي نو د عادي مسائلو څخه ئې پيل کړئ، کوم چي د داسي خلکو زده نه دي او که چيري داسي کس وي چي هغه په ديني مسائلو کي معلومات ولري او بحث درسره کوي، نو که چيري د هغه هدف حق ته رسېدل وي په دې شرط به بحث ورسره کوئ، چي پوره او کره معلومات ولرئ. خو که چيري د هغه مقصد حق ته رسېدل نه وي، يا ستاسو سره پوره معلومات نه وي، يا پوره معلومات لرئ خو کره نه وي، بيا به هيڅکله بحث نه کوئ بلکي هغه ځای به هم پرېږدئ.

پاته سو په سياسي مسائلو کي بحث کول، لکه څنګه چي سياست د ژوند يو مهم اړخ دئ، نو د دې پر ځای چي په داسي سياسي مسائلو کي بحث وکړئ، چي هغه په يو سياسي کس پوري اړه ولري او هغه هم ژوندی نه وي، د دې پر ځای خپل نظر يو څه پراخ کړئ او د هيواد پر اوسني حالت وږغېږئ؟ مثلاً: د افغانستان خارجي سياست په وروستيو کلونو کي څنګه ارزوئ؟ دا يوه داسي موضوع ده چي هر اخبار لوستونکئ په دې موضوع باندي نه پوهېږي، د دې به ګټه دا وي چي يو خو به هغه کسان بېځايه خبري نه کوي چي په دې اړه معلومات نه لري او هغه کسانو ته به ښه موقع وي چي په دې اړه معلومات لري تر څو خبري وکړي. دا ډول نوري سياسي موضوعګاني هم سته چي کولای سي عام د تفريح مجلسونه په علمي مجلسونه تبديل کړي چي ګټه به ئې دوه چنده سي.

احمدالله محمدي

# د استاد حاجي نور الحق خان

# لنډ ژوند لیک



حاجي نورالحق خان د مولوي حاجي اخترمحمد زوی د فراه ولایت د ګلستان ولسوالۍ د فیض آباد د کلي په یوه متدینه کورنۍ کې زیږېدلی دئ، ابتدایه ښوونځی ئې ترشپږم ټولګۍ پوري د ګلستان د ملامحمد فراهي په ښوونځي کي لوستی او بیا د کابل په دارالمعلمین کي تر دولسم ټولګي پوري خپلي زده کړي بشپړه کړي، تر دې وروسته ئې ۱۳ او ۱۴ صنفونه د کندهار په عالي دارالمعلمین کي د این سرویس په سیستم کي ویلي دي.

تقریباً ۱۹ کاله یې د کندهار په میرویس لیسه، احمد شاه بابا لیسه او زرغونې انا لیسه کي د ریاضي او فزیک تدریس کړی دئ، وروسته حاجي صاحب د جنګونو او کړاوونو له امله، چي اولادونه ئې د تعلیم د ستر نعمت څخه بې برخي نه سي کابل ته تللی او هلته ئې د پوهني په وزارت کي د خدماتو د عمومي مدیر، اداري معاونیت او د رئیس اداري په حیث خدمت کړی دئ.

کله چې د ډاکتر نجیب الله دولت سقوط وکړ بیر ته کندهار ته راستون سو، په ظاهرشاهي عالي لیسه، افغان ترک لیسه او د کندهار د انجنیرۍ او طب په پوهنځیو کي د ریاضیاتو او فزیک په تدریس بوخت سو.

حاجي نورالحق خان ۵۳ کاله په رسمي توګه او دوه کاله ئې هم د قراردادي معلم په توګه وظیفه اجراء کړې ده، خو فعلاً د مریضۍ له کبله پر کور ناست او د وظیفې څخه پنځه کاله مخکي په رسمي توګه متقاعد سوی.

استاد نورالحق خان پر پښتو او دري ژبو سربېره د انګلیسۍ ژبي سره هم بلدیت لري.

حاجي نورالحق خان استاد دا مهال شاوخوا د ۷۷ کالو دئ.

حاجي نورالحق خان استاد پنځه زامن او دوې لوڼې لري، چي درې زامن ئې ډاکتران، یو یې انجنیر او بل یې د اقتصاد پوهنځی څخه فارغ دئ.

حاجي نورالحق خان استاد د الجبر، مثلثات، فزیک، عمومي ریاضیات، عمومي فزیک او د کانکور د آماده ګۍ کتابونه لیکلي او چاپ کړي دي.

استاد ډېر ایمانداره، وطن پرسته، په وخت پوه، د امر تابع، وظیفه شناس، پرخپل مضمون فوق العاده حاکم، په پرېکړه کي قاطع، په واقعي معنی ښوونکی، د نېکو اخلاقو څښتن، د مذهبي، ژبني، دیني او منطقوي تبعیض څخه پاک، په ملګرتیا او انډیوالی کي کلک، وفادار او سپېڅلی انسان دئ.

استاد پر ښه لیاقت سربېره ډېره ښه سلیقه هم لري، د ژوند طریقه، ستایل او فهشن ئې اکاډمیک اما په ډېره ساده او کلیوالي لهجه خبري کوي.

استاد نورالحق خان المان، هند، تاجیکستان او ځینو نورو هیوادونو ته پنځه رسمي او غیر رسمي سفرونه کړي دي.

استاد ته د ښه کار کرده ګۍ له امله (۵۳) درې پنځوس ستاینلیکونه د جمهوري ریاست، مشرانو جرګې، د پوهني وزارت، د ولایت مقام او د پوهني ریاست لخوا ورکړل سوي دي.

ما د استاد سره فقط دوې میاشتي شخصي درس ویلی دئ، خو ډېر څه مي ورڅخه زده کړي دي او تر اوسه پورې دعاء ورته کوم.

استاد د دې خورا ارمانجن دئ، چي په افغانستان کی یو قوي مرکزي دولت جوړ سي، په ټول افغانستان کي سوله او آرامي برقراره سي، ټول افغانان په یوه اتحاد او اتفاق سره دخپل هیواد په آبادۍ او سوکالۍ کي کار وکړي، بېله کوم توپیر او یو ډول حقوقو درلودلو سره ژوند وکړي، دا د پښتون، تاجک، عرب، ازبک، هزاره او نورو نومونه چي په وطن کي د بې اتفاقۍ او تفرقې سبب ګرځي له منځه ولاړ سي[1].

---

[1] له انجنیر توریالي هلالي څخه مننه، چي د معلوماتو په راټولولو کې را سره همکاري وکړه.

# هنر او ادب

چلوونکی: م.ا. امید

احمد فاني

## غزل

مجلس د کاینات تو په رمزونو پوهېدل
څه ښه وي په علمو کې په شعرونو پوهېدل

پوهېږو که د بند ګرېوان له رازه همداشان
لازمه ده په خلاصو ګرېوانو نو پوهېدل

د بندي دروازې ژګېروی یې ښه ژباړلای سي
د لوړو د پوالونو په دردونو پوهېدل

خندا، سترګه وهل او په غرور تګ او راتګ
یو مرګ وي بل مرګی وي په مرګونو پوهېدل

د وخت د قدمو میده تک – تک اوري په موږ
احمد فاني د وخت په ساعتونو پوهېدل

خپلواک دریځ

## غزل

د ژوند تر هدیرې وړې د تیکرې څوکه کې درد
راشین د یوې پیغلې د زړګي څوکه کې درد

مسکا درته ریښې – ریښې لمن کې تولوم
ساتلی مې جانانه د پټکي څوکه کې درد

بېلتون غواړي ځای زموږ د نازکي رشتې منځ کې
کړي د ګلابونو د پټي څوکه کې درد

د ګران هیواد وجود به مې سږ بیا زخمي زخمي وي
دریځه را پیدا شو د سپرلي څوکه کې درد

بلال احمد دوراني

## غزل

تا مې هنداره د باور داسې ریچه ریچه کړه
اوس را ته ځان خپل او پردي ټوله بلا ښکارېږي

یقین مې نه کیږي چې ستا زړه کې وفا به اوسي
په هر کردار کې دي تصویر د بې وفا ښکارېږي

قصور ستا نه دی خپل ځان خپله ملامت ګڼمه
چې هر نادان را ته بالول غوندې دا تا ښکارېږي

زړګیه تا چې ځې د غم په اور کې ځان سوځاوه
هغه ته هېر کړې ناست پر څنګ اوس د بل چا ښکارېږي

بل چا کې دا جرئت نسته چې زما سر پرېکړي
چاړه پردی ده زور د متو د لالا ښکارېږي

بلال احمد هغه کس دی خوش نصیبه انسان
چې وخپل یار ته عنقریب ځې تمنا ښکارېږي

محمد نبي ښاد

## غزل

غواړې که یې نه غواړې خو غواړي دي
ستا زما په زړه څه پروا نو ژاړي دي

ستاسو ورانۍ تاسو باندې جوړې دي
زموږ وداني موږ باندې ویجاړې دي

ته او خدای رقیب ته هم داغسې دي؟
ما ته خو خورده دې ده خولې لاړې دي

ځې دې ده ګلونو اننګو پر غرو
اوښکې ده بڼو پر بام ولاړې دي

ته ملا په دوه نومه وریاده کړې
ښاد ویله زما قبولې دواړې دي

محبوب مشتاق

## د ژوند ملګري ته مي !

تــه زمــا چشــم يــې اروا يــې زړه يــې
هــو ګرانــي درد تــه مــي دوا يــې زړه يــې

د ګــل قامــت نــه بــه دي غېــږ تــاو کړمــه
د ميــوې ونــه يــې هــوا يــې زړه يــې

مــوږه تــه حســن د ســپوږمۍ تــه يــې
مــوږ تــه د ژونــد د شــپې رڼــا يــې زړه يــې

يوازيتــوب غونــدي خــاموش وجــود يــې
مســته ســندرنــه يــې چوپتيــا يــې زړه يــې

پــه خــوږو ســترګو کــې دي بنــد ولاړ يــم
درســته دنيــا يــې درســته ســا يــې زړه يــې

د جګــړې خــتم يــې د ســولې خونــد يــې
مشــتاق تــه زېــرى د بريــا يــې زړه يــې

غزن نيازى

## غزل

نيمګړې پــاتې شــوه نيمګــړې يارانــه همداســې
لکــه نشــه لکــه نيمګــړې پيمانــه همداســې

حســن بــې رنګــه او بــې حســه اينــه همداســې
سترګې همداسې او دسترګو داکيســه همداسې

ستا د راتلــو اوازه راغلــه او مــا ســا واخيســته
خيــر کــه تــه نــه راځــې راليــږه اوازه همداســې

مــوږ لا تــر اوســه د يويــل پــه تصوير زړه صبروو
مــوږ لا ســاتلې دا بدرنګــه فاصــله همداســې

زه هــم نيمګــړى وم تــه هــم رانــه نيمګــړې شولې
نيمګــړې ژونــد واو نيمګــړې زمانــه همداســې

ســتا د غــزن لېونــۍ چيغــې ســتا ســره خاموشې
دريــاب همداســې او بــې رحمــه کنــاره همداســې

حبيب الله قلم مل

## غزل

کاروان تندي اخيستي دئ ځاروان تنــدي اخيســتى
ميــن خــو لا پــر ځــاى پرېږده جانــان تنــدي اخيســتى

بېوســه بــه پــر دښــته خــود لــه چولــه چــولاوه وي
چې دلته مو په کلي کې لوى خــان تنــدي اخيســتى

له مځکې څه ګيله ده، چې يې شنه لمن سپېره سوه
په دغه ورځو شپو کې لوى اسمان تنــدي اخيســتى

پــه تنــده کــې بــه تانــدي لــه دې خــاورو وتــو کېږي
دا نــه چې نــو پــه للمــه کــې بــاران تنــدي اخيســتى

پــه غېــږ کــې يــې ځپــې ځپــې ســراب اوړي را اوړي
د تــن هــر رګ يــې وچ دئ بيابــان تنــدي اخيســتى

ګل رحمان رحماني

## غزل

چــې جمــال لــرو جــلال تــه بــه رســېږو
د روحونــو اتصــال تــه بــه رســېږو

د زړه ويښــو بانــدې کــاږو انځورونــه
د يــوه بــل هنــر کمــال تــه بــه رســېږو

شــعريت مــو لــه عــادي زګيرويــو ځــاځي
د يــوه ښــکلي غــزل خيــال تــه بــه رســېږو

پــه وزرونــو مــو پــردي رنګونــه بــار دي
خپلــو وړانګــو خپــل مشــال تــه بــه رســېږو

د خيــال دنګــه منــاره مــو را پرېــوتې
زمزمــې غــواړي بــلال تــه بــه رســېږو

د فريــاد لــه کلــي تېــر شــوو د ژونــد ښــار تــه
د لفظونــو سُــر و تــال تــه بــه رســېږو

د زړه کښــت مــو پــه رڼــو اوښــکو زرغــون کــړ
د رنګونــو خــوږ شــمال تــه بــه رســېږو

**نصیر شهاب**

## غزل

ورکه خبره ده چې ولې او په څه ګرځمه ؟؟
دا څووم ځل دی چې ناهیلی دي له وره ګرځمه

له ابادیو ډکه ښاره درته پام مې دی خو
زما زړه برباد دی ځکه پټه خوله ګرځمه

ستا د عطرینو اوښکو بوی مې له ټټره خېژي
چې ځوړند سر پر تا نیولي ګرېوانه ګرځمه

غم داسې وځپلم ځان سمبالولی نه شم
قدم - قدم پڅلاسنیوي د دېواله ګرځمه

ته زلفې مینځې او اوبه یې خوشبویي راوړي
زه چې دا ټوله ورځ پر غاړه د ویاله ګرځمه

اوس هغه مسته توتکۍ د منارونه یمه
اوس لالهانده لکه بې ځالې مرغه ګرځمه

**عبدالله ستوری**

## غزل

الهي دا دوږخ کړې نور جنت د سپیني سولي
ودې خلګو ته وښيې نعمت د سپیني سولي

چې دا دجګړې اور راڅخه واخلي په شرنګي کي
نازل کړې په خاوره کي رحمت د سپیني سولي

چې نور دا لونګین ځوانان دجنګ ښامارونه خوري
چې پوه سو په ارزښت او اهمیت د سپیني سولي

چې اوښکي دیتیم په شمله پاکي کړو په مینه
را وکره په زړونو کي الفت د سپیني سولي

د سولي ګلابي رخسار ته سترګي انتظار دي
که وويني په ستوري کرامت د سپیني سولي

**الماس درانی**

## غزل

ستړی روح مې په رتلې اوښې سپور دئ
ژوند د سره دوزخ د پای د څوکي اور دئ

د فرعون له تیکې وتې سپیني توري
پخپل لاس مې ستا تر تیغ نیولی ورور دئ

حسنه خرڅ د خامو جستو په بازارېې
د بدرنګو قوارو درته پیغور دئ

هره ورځ ترې پورته ګل، ګل جنازې دي
زما دغسې ناسوره ښار کې کور دئ

د زنځیر د شرنګ له شوره مې زړه رپې
په مجهول ځان مې د نیمې نړۍ پور دی

**زېنب هیله**

## غزل

په تا پوره نه سوه په ما باندې ودانه نه ده
خو زېرېدلې زنده ګي هم له خپګانه نه ده

ما اوس د هری مجبورۍ سره پر زړه نیولي
ستا د غمونو یارانه دومره اسانه نه ده

بې مشکلاتو زنده ګي پښتنو کړې نه ده
بې مشکلاتو زنده ګي دلته روانه نه ده

نور زه د خپل زړه په څېرولو پسې خپله وځم
د ښکلو واړندي د بای للو کیسه ګرانه نه ده

زه چي اوس سوځمه د ژوند غوښې په اور د بیلتون
بس کومه "هیله" مي را پاته له جانانه نه ده

شریف الله اشرف

# زما ارغنده اشنا

ارغنده، وه ارغنده
زړه مي هر دم رغېږي
او بېرته چوي هم
رغېږي ځکه یاره،
چي مسلمان وې یاره
او هم انسان وې یاره
کلتور دي هم پېښه ؤ
د ژوند لاربنود هم ته وې
نو دغه څو ځیزونه
د ژوند کولو لار ده
او تا بری پرې لاره
بېرته چي زړه چوېږي
لامل ئې دادئ وروره !
ستا خو لا ډېر وختونه
مبارزه پاته وه
هم د انسان لپاره
او مسلمان لپاره
ماول دا دود او رواج
به هم راوځلوې
د دې نړۍ پر کلیو
په داسي نوي انداز
خو، دا کلیوال، نړۍ وال
ستا له درسونو ځخه
ډېر وه په تنګ راغلي
نو کلیوالو یو دم
پر عزرائېل ناره کړه
چي دلته یو نفر دئ
خورا نامي انسان دئ
د مسلمان په قام دئ

موږ ته مجهوله لاره
خورا په ځیر رابنیي
خو موږ وګړي وایو چي
د الجبر استاذ
دلته واره نه کوي
عزرائېل دا خبره
یو دم قبوله کړله
او عزرائېل بېخي ژر
د دې ارغند جاینشین
نوی او بل استاذ
یو ماشینداری استاذ
چي د ټوپک په ژبه
لړ داسي ډېر پوهېږي
خلګو ته ودروئ
او عزرائېل ناره کړه !
اې د ناپوهو کورو !
د سرتمبه وګړو
یو بې هدفه قومه !
تاسو لائقت نه لرئ
د دغه ښکلي ارغند
د یوه ښکلي انسان
نو ئې ارغند جانان ته
لړ په کرار وویل
خو ښه دي نه ده ګرانه
چي خدای ته بېرته
ورسو
او تا و خدای سره لړ
د بلاکیف ملاقات
د ابدي مېلمستیا

د جوش او خروش خبري
ښه د نژدې مجلس
او نور هم پټ رازونه
د خدای وسپین
حضورته
په مینه نور ووایې؟
ارغند ویله ورته !
ملک الموته ګوره !
ته ئې د مرګ ملکه
دا چي زما سره ستا
خبري دونه نرمي
مینه دي هم ده ډېره
نو ملګرتیا دي غواړم
د تل ابد لپاره
ولي د دغه نړۍ
هر یو وګړی، چي دئ
هیڅ ئې د میني په نوم
کومه خبر نه ده زده
نو، ستا تر میني سم جار
له دغه تور پرتمه
نور ما که ډېر لېږي
بېخي بې حده لېري
زه یم په تنګ راغلی
له دې ظالم مخلوقه
له دې کرکجن مخلوقه
له دې بې میني خلګو
ای عزرائېله ګوره !
یو اخري خبره !
دلته چي هر وګړی

د میني نوم پېژني
سیده ئې زما پر لوري
ژر ئې تر ما پوري
په ډېر تلوار راوله
عزرائېل هم داغسي
په دود د ټینګي وعدې
لاس و ارغند ته ورکړئ
ځکه نو بیا عزرائېل
د احمدشاه په شمول
نهه تنه نور وګړي
سپین د یوې کورنۍ
خبریالان ملګري
او څو هم عام وګړي
ارغند ته ور وستله
ویل ارغنده آشنا !
هلته، چي وپېژني
د میني څو توري
زه ئې تر تا راولم
وعده به نه ماتوم
دا مي پیمان کړی دئ
زما ارغنده آشنا!

صدیق الله عظیمي

# خرقه شریفه د تاریخ په اوږدو کې

## (خرقه شریفه او بیارغونه)

(۶)

د امیر حبیب الله خان د بیارغوني اړوند اقدامات:

امیر حبیب لله خان هم د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د مبارکي خرقې لپاره نه هېرېدونکي کارونه وکړل؛ لکه: دخرقې شریفي د ودانۍ بیا جوړونه، د خرقې شریفي لپاره دسفینو زرو پنجره، د سفینو زرو دروازه، اولس ته دخرقې شریفي ښکاره کول او همدارنګه د ده تر مرګ وروسته د ده د مېرمني په واسطه د خرقې شریفي لپاره د پوښ زمینه برابرول.

**د خرقې شریفي د ودانۍ بیارغونه:**

لکه څنګه چې مخکي وویل سول، چې دغه ودانۍ د احمدشاه بابا په ژوند کي جوړه سوه او د ترمیم کار ئې د تیمورشاه دراني په وخت کي په (۱۱۹۰ هـ) کال کي پای ته ورسېدی، د دوهم ځل لپاره چې کله امیر حبیب الله خان په ( ۱۳۲۵ هـ ق ) کال له کابل څخه کندهار ته راغلی او د خرقې شریفي زیارت ته ولاړی هلته ئې وویل چې دغه زیارت باید دوباره ترمیم، رنګ او نقاشي سي او د دې کار د سرعت لپاره ئې یو څو کسان دهرات څخه راوغوښتل ترڅو د ودانۍ د خطاطۍ، نقاشۍ، رنګ مالۍ او مهندسۍ په اړه کومک وکړي. صوفي عبدالحمید د نصرالله خان بارکزائي زوي د کندهار د چهار کوځې اوسېدونکی، چې په کال (۱۳۰۷ هـ ق) کي په کندهار کي زېږېدلي وو او د ۹ کلونو په عمر د خپلي کورنۍ سره هرات ته کډه سوی وو، وروسته په (۱۳۲۷هـ ق) کي د امیر حبیب الله خان په امر د هرات څخه وکندهارته راغلی او د خرقې شریفي د رنګ امیزۍ نقاشي ئې وکړه او په ښه خطاطۍ سره ئې د خرقې شریفي په چت کي دابیت ولیکي: اینجا بیاکه نور یقین جلوه میکنند.

صوفي عبدالحمید په (۱۳۰۷هـ ق) کال د کندهار په چهارکوڅه کي نړۍ ته سترګي پرانستي، وروسته دخپلي کورني سره هرات ته په کډه تللی، هلته ئې ریاضي، طبیعات، هندسه، جغرافیه، تاریخ د مختلفو شخصي استادانو څخه زده کړه، چې وروسته په (۱۳۲۷هـ ق) کال دآمیر حبیب الله خان په امر کندهار ته راوغوښتل سو ترڅو د خرقې شریفي ودانۍ په ښه ډول ترمیم کړي، د خرقې شریفي د ودانۍ ترڅنګ ئې د موی مبارکي، منزل باغ او د نورو مزارو ترمیم هم وکړ، چې وروسته په ( ۱۳۳۲هـ) کال د افغانستان دشمالي ولایتونو په اړوند ئې د جغرافیې کتاب ولیکی

او په ( ۱۳۴۴هـ ق) کال د صنایع رئیس سو، په (۱۳۴۵هـ ق) کال کي د کابل د مطبوعاتو رئیس وټاکل سو.

**د خرقې شریفي لپاره دسپینو زرو د دروازې ډالۍ:**

د خرقې شریفي مخصوص دالان، چي په گنبده کي دننه دئ، کله چي موږ اوتاسو دخرقې شریفي عمارت ته ورداخل سو وروسته دبخملي صندوق وخواته وگورو پنجره او بغل ته ئې دروازه معلومېږي، دغه دروازه چي مخکي دلرگي څخه جوړه سوې وه، بیا د امیر حبیب الله خان په وخت کي د سپینو زرو دروازه ددوه متره اوږدوالي، دیو سل او پنځه ویشت سانتی متره پلنوالي په اندازه له چوکاټ سره د حکومت له خوا دسردار خوشدل خان په مرسته دکندهار لوی نائب په واسطه ډالي سوه، چي دغه عبارت پکښي لیکل سوي وه:

بضاعت نیاوردم الامید

خدایاز عفومکن امید

(وکیلي: ص،۱۸۰)

خو رشاد صاب بیاوایي: د خرقې شریفي له پاره د سپینو زرو پنجره، دروازه او د سپینو زرو هگۍ د سردار نصرالله خان په امر غلام قادر زرگر، چي په ښکارپور بازار کي د حاجي لال تر مسجد لاندي ئې دوکان وو (ډېر امین سړی او په زرگرۍ کي ښه ماهر وو) جوړ کړي دي. (رشاد: ص،۴)

محمدولي زلمی بیاوایي: کله چي د امیر عبدالرحمن خان زوی سردار نصرالله خان په (۱۳۱۳هـ) کال کي کندهار ته راغلی د خرقې شریفي هغه مخصوص دالان چي په گنبده کي دننه دی د سپینوزرو پنجره ئې ورجوړه کړه، د دالان مخ او مخصوصه دروازه ئې هم په زرو ورجوړه کړه. بیا د سردارمحمدعثمان خان په امر صوفي عبدالحمید خان بارکزائي چي په کابل کي د صکوکو رئیس هم وو دنقش او نگار علاوه شاوخوا ئې د ( سورة یس او سورة الفتح) سورتونه په اعلی کوفي خط باندي ولیکل. (خلمی: ص،۲۰۱)

عزیزالدین وکیلي بیا دا هم وایي چي په (۱۳۴۱هـ ش) کال د حمل پر اوله مي د خرقې شریفي متولي محمد حق اخندزاده څخه پوښتنه وکړه چي دسپینو زرو د دروازې دنصب څخه وروسته هغه دلرگي دروازه څه سول؟ هغه په جواب کي راته وویل چي هغه ماخپل کور ته یووړل په گوښه او پاک ځای کي مي نصب کړه اوس هم موجوده ده. (وکیلي: ص،۸۰)

په هر صورت د خرقې شریفي لپاره د سپینو زرو دروازه او د سپینو زرو پنجره د امیر حبیب الله خان د واکمنۍ په دوره کي جوړي سوي دي، ځکه چي د امیر حبیب الله خان کارنامې د خرقې شریفي لپاره د ده د هغه فرمان څخه معلومېږي، چي د خرقې شریفي د عمارت په دېوال کي لیکل سوی دئ. په رښتیا هم کله چي تاسو د خرقې شریفي عمارت ته ور داخل سی د پنځه متره مسافې طی کولو څخه وروسته یو ځل بیرته مخ واړوئ د دروازې سرته به یو د سردار نصرالله خان فرمان او بل طرف ته به د امیر حبیب الله خان فرمانووینی، چي دا دواړه فرمانونه د دوی د کارنامو شاهدي وروکوي.

په هر صورت د امیر حبیب الله خان د وخت څخه تر اوسه پوري دغه دروازه او پنجره، چي د سپینو زرو څخه جوړي سوي دي، پر خپل ځای پاته دي، کوم زیان نه دی ور رسېدلی، اما د حامد کرزي د واکمنۍ په وروستیو کي د ایران د حکومت له لوري څخه یوه دانه پنجره، چي د نیکل څخه جوړه سوې وه د کندهار د والي توریالي ویسا په مرسته و خرقې شریفي ته په دې نیت راوړل سوه، چي مخکنۍ پنجره زړه سوې ده، دغه زړه پنجره لیري کړو او پرځای ئې نوې پنجره چي دایران د حکومت لخوا د خرقې شریفي دعزت او احترام په خاطر هدیه سوې ده نصب کړو؛ که څه هم دغه نوې پنجره او زړه پنجره دواړي د جوړښت له لحاظه یوشان

وې، په کوم څه کي چي د دوي ترمنځ فرق وو؛ زړه د سپينو زرو او نوې د نيکلو څخه جوړه او د مخ آب ئې دسپينو زرو وو.

کله چي امر وسو چي دغه نوې پنجره د زړې پنجرې پر ځای کښېښنوي، نو د خرقې شريفي د متوليانو د غبرگون سره مخامخ سوه، هغوی ويل چي داکار په وزارت پوري اړه لري. خبر د اطلاعات او فرهنگ وزارت ته ورسېد، چي د اطلاعات او فرهنگ وزير (سيد مخدوم رهين) د پښتني د حل لپاره د کندهار تاريخي ولايت ته سفر وکړ. کندهار ته تر رسېدو وروسته ئې د کندهار د امنيه قومندان (جنرال عبد الرازق) په مرسته د خرقې شريفي زيارت ته ځان ورسوی، هلته د خرقې شريفي د زيارت کولو څخه وروسته ئې وويل: زړه پنجره دي پر خپل ځای پاته وي چون دا زموږ لپاره يو تاريخي اسناد دي او بل دا زموږ د فرهنگ پاله واکمن امير حبيب الله خان د نه هېرېدلو يادگار دئ، چي موږ په وياړو او هيڅوک حق نه لري چي د دغه مقدس ځای هيڅ شی بې ځايه کړي.

هغه وويل چي موږ د ايران له دولت څخه ډېر منندوي يو، چي د پنجرې په اړوند ئې مرسته وکړه وروسته ئې امر وکړ، چي دغه پنجره دي په عمارت کي دننې لاس په عبادت خانه کي چي کلکين ئې د مسجد صحن ته خلاص دی نصب سي. همدا رنگه امنيه قومندان جنرال عبدالرازق دا هم وويل چي زه به لس لکه افغانۍ د خرقې شريفي د عمارت لپاره د کندهار اطلاعات او کلتور رياست ته ورکړم.

د څه وخت په تېرېدو سره امنيه قومندان جنرال عبد الرازق هم د خپلي خبري موافق لس لکه افغانۍ د اطلاعات او کلتو رئيس دواخان مينه پال ته ورکړې. دواخان مينه پال هم د خرقې شريفي د متوليانو سره تر مشورې وروسته په دې توافق وکړ، چي د خرقې شريفي کلکينان، په عمارت کي دننه د څلورو عبادت خانو دروازې او همدا رنگه د متوليانو د ذکر د خانقاوو دروازې په ښه انداز سره د لرگي څخه جوړې کړي.

**اولس ته د خرقې شريفي ښکاره کول:**

لکه څنگه چي ټول بشريت ته معلومه ده، چي خرقه شريفه زموږ او ستاسو د خوږ پېغمبر حضرت محمد صلی الله عليه وسلم هغه معتبر لباس دئ، چي په حجة الوداع او د ژوند په وروستيو شپو او ورځو کي ئې اغوستی، د هغه وخت څخه تر اوسه پوري خرقه شريفه څو ځايو ته وړل سوې، چي بالاخره د خرقې شريفي وروستی سه ... هار ولايت ته د امپراتور احمدشاه بابا په امر د ور ... لي خان په مرسته تکميل سو. تر اوسه پوري د ک ... ر او ټوله افغانستان خلک په ډېر احترام ورته قايل دي او هم ... سختو ورځو او د مشکلاتو د حل لپاره د خدای ... له دربار څخه د خرقې شريفي په شفيع کولو او ښکاره کولو سره د رحمت نظر غواړي.

خرقه شريفه چي اوس ئې په کندهار کي ډېر کالونه کيږي د امپراتور زمانشاه د هغه فرمان مطابق چي ويل ئې ببله دپاچا د امر څخه به ئې هيڅوک د هغه خپل صندوق څخه نه راباسي، حتا د خرقې شريفي متوليان هم دا حق نه لري چي ببله د پاچا د امر څخه ئې ووينې، نو خرقه مبارکه هم په دغه جريان کي د وخت د پاچاهانو له طرفه څخه دوه ځله د دې لپاره ښکاره سوې ده، چي د خداي پاک څخه د موجوده مشکل حل وغواړي، چي د هغوی څخه په لنډ ډول يادونه کوو:

لومړی د امير حبيب الله خان د واکمنۍ پر مهال په ۱۹۱۵ م کال چي د کولرا ناروغي راغله، يوازي په کابل کي ئې د ۴۱ ورځو په اوږدو کي ۱۴۲۲ کسان ناروغ او ۸۸۳ تنه ووژل. په پغمان کي ئې د څلورو ورځو په اوږدو کي ۱۵۰۰ کسان ووژل او همدا رنگه د هيواد په نورو ولايتونو کي؛ لکه: لغمان، کونړ، لوگر، پکتيا، کندهار، هرات او نورو ولايتونو کې هم ډېر

شمېر کسان له منځه یوړل. (غبار: ص، ۹۲۳) نو امیر حبیب الله خان هم د همدغه مشکل د حل لپاره په کندهار کي خرقه شریفه د خپل صندوق څخه راوایسته او د ټول اولس په مخکي ئې خدای جل جلاله ته په زارۍ سره د کولرا د ناروغۍ د مخنیوي په اړه دعاګاني وکړې.

د امیرحبیب الله خان د خانمي له خوا د خرقې شریفي د صندوق لپاره نوي پوښ:

د امیر حبیب الله خان تر مرګ وروسته د هغه خانمه حضرت سراج الخواتین د خپل لوی او نابغه زوی غازي امان الله خان سره په (۱۳۰۴هـ ش) کال د مېزان په میاشت کي کندهار ته ولاړه او د مېزان په ۱۹ نېټه، چي کندهار ته ئې د راتلو لومړی ورځ وه، د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د مبارکي خرقې لپاره ئې یو ډېر ښکلی پوښ چي په زیاتو مصارفو او ځیرکتیا سره ئې ترخپل نظر لاندي په ډېر درنښت سره برابر کړی وو دکابل څخه ئې په ډېر احترام سره د همدغه مقصد لپاره راوړی وو په ډېرو مراسمو ئې دغه مبارک ځای ته تحفه کړ او د هغه مراسمو د اداء کولو څخه وروسته ئې دخرقې شریفي په میدان او د هغه ځای دجادې په اوږدو کي چي مراسم نیول سوي وه او زیات کندهاریان ئې د احترام لپاره ولاړ وه، حضرت موصوفې خبري وکړې، وې ویل: اې زما ګرانو الحمدلله چي وروسته تر ډېرو امیدونو مي سترګي ستاسي په لیدلو سره روښانه سوې او خپل وطن کندهار مي ولیدی، بعضي له تاسو څخه ماته دکاکا ځیني له تاسو څخه ماته دورونو او ځیني له تاسو څخه ماته د اولاد حیثیت لري او ستاسي د دغه مراسمو څخه ډېر تشکر کوم.

زما ګرانو ورونو! اسلامي دنیا داتفاق څخه ترقي او پرمختګ کړی وو او هغه ورځ، چي زموږ او ستاسو د دین دښمنانو د اسلام په منځ کي پیدا کړی دئ، سبب ئې نفاق دی، باید ښه حس کړو تر څو همهغه اتفاق قایم وګرځوو، ترڅو د افغانستان خاوره چي موږ، ستاسو او د وطن اولادونو ته دلوړوالي او پرمختګ هیله لري ورته ورسېږو. زه د خدای جل جلاله ډېره شکر ګذاره یم، چي خپله د امان الله خان په کوښښونو او مېړاني سره نن ورځ په افغانستان کي ډېر زیات فرق پیدا سوی، د خدای څخه ورته د ستاسو او د افغانستان دخدمتونو لپاره ډېر عمر غواړم او له خدای څخه غواړم چي تاسي په دنیا کي داسي اعمال سرته ورسوی، چي د محشر په ورځ دخدای په وړاندي خوشحالي ولرئ.

داخله وزیر عبدالعزیز خان د معاذ الله خان بارکزائي زوی، چي دحضرت موصوفې دلویو اکاګانو څخه وو د ده خبري په ډېر غور سره واورېدې او په پښتو ژبه ئې په ډېر لوړ اواز سره ټولو حاضرو خلګو ته بیان کړې.

حضرت موصوفې د دوهم ځل لپاره په ۱۳۰۷ هجري شمسي کال دجدي د میاشتي په اخیره لسیزه کي کندهار ته راغلی او دراتلو په لومړی ورځ خرقې شریفي ته ولاړه تر زیارت کولو وروسته ئې ډېر خیراتونه اونذرونه وکړل.

د خرقې شریفي د بیارغوني اړوند د محمد ظاهرشاه کړني:

محمدظاهرشاه چي د افغانستان پرتخت کښیناستی د خرقې شریفي لپاره ئې یو لړ عمراني کارونه وکړل. د محمدظاهرشاه په دوره کي دکندهار والي محمدصدیق خان د ښاروال افضل خان په مرسته دلښکرګاه څخه د سنګ روخان ډېره دخرقې شریفي د عمارت د ترمیم کولو لپاره راوړه، تر څو د خرقې شریفي د عمارت ودانۍ په ښه ډول ترمیم کړي، چي په دې نتیجه کي نصرالله خان مهندس، چي یو ښه ماهر او په کار پوه سړي وو په کار وګمارل سو. د دې ترڅنګ ئې د خرقې شریفي دنقاشۍ کار خیرمحمد کلال ته وسپارل سو، چي هغه هم د خرقې شریفي د عمارت په نقاشۍ کي زیات کوښښ وکړ، چي د عمارت

لوېدیځ طرفته ئې دنقاشۍ د رنګ جوړولو لپاره ئې کوره جوړه کړه، چې په اساني سره به رنګ په دغه کوره کې جوړې دئ او دځه وخت تېرېدو وروسته ئې وکولای سول چې د خرقې شریفې عمارت په ډېر ښه ډول نقاشي کړي. همدارنګه د محمدظاهر شاه په دوره کې د خرقې شریفې د عمارت دروازه چې مخامخ د لمرخاته خواته خلاصه ده، د محمدظاهرشاه په امر سره دسپینو زرو پوښ د عصمت الله زرګر او استاذ محمد علي زرګر چې دغه دواړه د اهل تشیع څخه وه جوړه سوه چې دغه کارګرانو هم تر خپله وسه پوري کوښښ وکړ، چې په ښه ډول ئې جوړه کړي، چون د دغه پوښ لپاره هر څه کارېدونکي مواد او وسائل د دولت له طرفه اماده سوي وه، چې وروسته ئې کار دعمارت شمال طرفته شروع سو، چې په ډېر وخت سره دغو کارګرو؛ لکه: عصمت الله زرګر او استاذ محمد علي زرګر، نه یوازي داچې خپله استاذي وښیي بلکې هغه ایماني جذبه ئې هم د خرقې شریفي ددروازې په جوړولو کې وښوده.

د محمدظاهرشاه په دوره کې د خرقې شریفي د احترام پخاطر دخرقې شریفي دعمارت چت هم د افغانستان د دولت له لوري د عزیزالله هراتي چې د ژوند ډېر وختونه ئې په ایران کې د خپل کسب د پرمختګ لپاره تېر کړي وه، د افغانستان د دولت له لوري راوغوښتل سو ت خرقې شریفي عمارت په ښه ډول آینه کاري کړ عزیز الله هم دخرقې شریفي دعمارت په آینه کولو حد زیات کوښښ وکړ او په ښه ډول ئې آینه کاري سرته ورسول.

نور بیا...



دا عکس د محمدظاهرشاه د هغو کړنو شاهد دئ، چې د خرقې شریفي د عمارت عمومي دروازې ته ئې دسپینوزرو پوښ ورکړ

محمد نبي سلطاني

# په کار کي کمال او غوره توب

د خدای جل جلاله په ټولو مخلوقاتو کي کمال او غوره توب له ورایه ښکاره او څرګند دئ. له واړه مېږي نیولې په لمر، سپوږمۍ، ستورو، ورځ، شپه، ونو او نورو کي چي څونده کمال او غوره توب دئ، انسان په یوویشتمي پېړۍ کي ورته عاجز او ورڅخه بې برخي دئ، دې مطلب ته قران کریم داسي اشاره کوي:

الَّذِي خَلَقَ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ طِبَاقًا مَا تَرَى فِي خَلْقِ الرَّحْمَنِ مِنْ تَفَاوُتٍ فَارْجِعِ الْبَصَرَ هَلْ تَرَى مِنْ فُطُورٍ. ثُمَّ ارْجِعِ الْبَصَرَ كَرَّتَيْنِ يَنْقَلِبْ إِلَيْكَ الْبَصَرُ خَاسِئًا وَهُوَ حَسِيرٌ. (سورة الملک: آیت، ۴،۳)

ژباړه: هغه ذات چي اوه آسمانونه ئې پوړ پوړ پیدا کړل، د رحمن خدای په مخلوقاتو کي بېلوالی لیدی نه سې، نو وغړوه ستر ګي، آیا ګورې کوم یو چاود؟ بیا هم وغړوه ستر ګي په وار وار، راوبه ګرځي ستر ګي ستا پر لوري نامراده او وي به ارمانجني.

که هرڅونده په دې پراخ او بې انتهاء عالم کي د کوم عیب او نقص د موندلو لپاره لټه وکړو، هري خوا ته ستر ګي وغړوو، د دې تکل وکړو چي کومه (تشه/خلاء) ومومو، خپلې ستر ګي دونده یوې خوا بلې خوا ته وغړوو چي سترې او ستومانه بېرته راوګرځي، هیڅکله به نه کوم توپیر ومومو او نه تشه.[۷]

له پورتني مبارک آیت څخه دا څرګندېږي، چي پالونکي رب هرڅه غوره، ښه، ښایسته، موزون او دقیق پیدا کړي، د شاتو موچۍ ګورئ، چي څومره منظم او ښایسته کور ځان ته جوړوي، داسي منظم کور چي د نړۍ ستر مهندسین ئې په ډېرو مجهزو وسائلو هم له جوړولو عاجز دي، له داسي توکیو ئې جوړوي چي د شاتو په څېر شی پکښي تر اوږدې مودې خوندي او روغ رمټ ساتلی سي، په دې پوهېږي چي څنګه د خپلې خوښي (مَلِکه) او (واکمن) ځان ته غوره کړي، د زور پاچایي نه مني، په ډېر ښه شان خپل وظائف په خپلو کي وېشي، د نظافت او صفایي خیال ساتي، د پردیو او هغو مچیو له ننوتو مخنیوی کوي چي له ناپاکو وزرونو او پښو سره د دوی پاک او صفا کور ته ننوتل وغواړي، د کور په دروازه کي حساس او هوښیار پهره داران دروي، هر ننوتونکی څاري، یوازي په هغه صورت کي د ننوتو اجازه ورکوي چي (خپل) او (پاک ستره) وي، په دې پوهېږي چي څنګه د ګلانو عصاره وزبېښي او شات ترې جوړ کړي، داسي شات ترې جوړ کړي چي د کلونو کلونو په تېرېدو هم نه ګنده کېږي، د انسان د ډېرو بیماریو لپاره درمل دئ، څو ـ څو کیلومتره لري د ګلانو په لټه کي ځي، بېرته راګرځي او له کومي اشتباه او غلطۍ پرته د خپل کور دروازه پیدا کوي[۸].

---

[۷] د قران پلوشي: ۸، ټوک، ۱۰، مخ.

[۸] ساینس او د قرآن علمي اعجاز، ۱۰۸، مخ.

همداسي مېږی یوه وړه حشره ده، چي ژوندئې مونږ ته د توحید، خدای پېژندني، غوره توب او کمال درس راکوي.

ددې وړوکي ژوی ژوند، پر ګډژوند، ګډکوښښ او یو د بل سره پر ملګرتیا ولاړدئ او یو د بل په مرسته خپل کارونه کوي، داګډه ملګرتیائې موږ د مېږتون په جوړولو او د دانو او خوړو دراغونډولو په وخت کي په ښه توګه لیدلای سو.

داحشره پر ته له دې، چي پوهنتون ته تللې وي، دکرهنې پوهنځی ئې ویلې وي په خدای ورکړي پوهې، فطري غریزې او احساس سره په دې پوهېږي، چي غله دانه په سوري کي خوسا او خرابه نه سي، نوپکار ده، چي نیمه ئې کړي. خپلې سوړي اومېږتون په لوړ او وچ ځای کي جوړوي، چي اوبه ورته ونه رسېږي. مېږی که محسوس کړي، چي دانه لنده سوې، نوسمدستي ئې له سوري څخه راباسي اولمر ته ئې ږدي.[9]

ونې په څونده غوره توب او کمال سره شپه او ورځ په کار بوختي وي، زیار باسي، مضر ګازونه جذبوي او زموږ د اړتیا وړ اکسیجن تولیدوي، د مځکي له خاورو په خپلو نازکو جرړو سره هغه حیاتي مواد جذبوي چي موږ ورته ضرورت لرو او د لمر د وړانګو په مرسته له دغو موادو موږ ته ښایسته او خوندوري مېوې جوړوي.[10]

الله جل جلاله چي څونده په کمال او غوره توب سره د هر څه تخلیق کړی همداسي د خپلو بندګانو څخه غواړي چي په کمال او غوره توب سره خپل هر کار تر سره کړي. په دقت سره اودس تازه کړي، هغه داسي چي په اوبوکي به افراط او تفریط نه وي، شاوخوا به نه ګوري، خبري به نه کوي، په منظمه توګه به بر پولل له خولې څخه بیل کوي داسي نه چي اول پښې او بیا خوله، بلکي اول لاسونه، بیاخوله، بیا پزه، مخ، لاسونه تر څنګلو، د سر مسح او تر ټولو روسته پښې تر بیجلکو پوري پر پولل کیږي، تردې وروسته پر لمانځه په یوه لیکه کي منظم وړه پر اوږه اول په لومړي او وروسته په جوړېدونکو صفنو کي په ادب او احترام سره لمونځ کول، اول راسته او بیا چپه خواته سلام ګرځول، تر دې وروسته د خپا      ګار څخه نه په ډېر لوړ او نه په ډېر ټیټ ږغ بلکي      ط ږغ په خضوع او خشوع سره دعا (دوعا) غوښتل . ور....

خو متاسفانه چي دا الهي امر او فریضه ;      امه لوېدلې موږ په هر څه کي غلو (افراط او تـ      ه عباداتو نیولې تر معاملاتو پوري د بې کمالۍ او بېغورۍ هغه اخیري حد ته رسېدلي یو چي نور څه ته ځای پکښې نسته، د مثال په توګه بې دلته د څو څخه یادونه وکوو:

په عباداتو کي: موږ پر عباداتو څورا ټینګ یو، یعني دا چي لمونځ کوو، روژه نیسو، ذکات ورکوو او ... لمونځ که یوازي کوو او یا په مسجد کي په امام پسې، خو د ځینو لمونځ مو داسي دئ، چي په میراث له نیکه څخه ئې پلار ته او له پلار څخه ئې زوی ته پاته وي، په معنا او مفهوم، اسرارو او انوارو ئې نه پوهېږو هغه خضوع او خشوع، چي باید په لمانځه کي پام ورته وسي هیڅ پام نه ورته کوو. هغه حرکات چي په لمانځه کې ئې تر سره کوو په مقصد ئې نه پوهېږو یوازي په نا اګاهانه توګه پورته او کښته کېږو، که په لنډه توګه ووایو هغه کمال او غوره توب چي په لمانځه کي انسان معنوي ارتقاء ته رسوي له موږ څخه ورک دئ، بس

---

۹ د سروزرو ګربښي: ۶۰مخ.

۱۰ ساینس او د قرآن علمي اعجاز: ۱۰۸، مخ.

یوازي د دې لپاره چې د ښه لمونځ کونکي نوم رابانده یاد سي تر مسجده ځو او راځو.

همداسي روژه چې د انساني وررولۍ، یوالي، مرستي، او یو له بل سره د همدردۍ او زړه سوي له درس سره په کال کي یو ځل راځي په هغه ډول ئې هر کلی نه کوو لکه څنګه چې ئې ستر څښتن له موږ څخه غواړي. په دې میاشت کي روژه نیسو، لمونځ کوو، ذکات ورکوو او... خو هغه د وروري، یوالي، مرستي او یو د بل سره د لاسنیوي فضاء له منځه وړو. په دې میاشت کي تر ټولو میاشتو ډېري فزیکي شخړي، یو و بل ته ښکنځل او... کوو، هم داسي په دې میاشت کي د دې پر ځای، چې پر خپل مسلمان ورور اساني راولو سختي کوو، په مزدور ډېر کار کول او مزدوري لږ ورکول، ارزانه شی په ګرانه پلورل او ... همداسي مو حج دئ، چې ډېر کسان ئې د نامه لپاره کوي، هغه معنوي ښېګڼه او اسرار چې د حج په کولو سره تر لاسه کېږي د هغه په قیصه کي نه دي.

په دین کي: موږ اسلام په صحیح او پوره توګه نه دئ پېژندلی. عموماً موږ اسلام د عبادتونو یوه وړوکې ټولګه (لمونځ، روژه، زکات او حج) د اسلام دین ګڼو او نور ټول دین مو له پامه غورځولی. د اسلام په ټولنیز، سیاسي، اقتصادي، کلتوري او نورو ټولو ډګرونو کي دونده غیر منظم او ناخبر یو چې د ټولو زده کړه له نورو ادیانو څخه کوو. قران کریم او نبوي حدیث مو شاته پرې ایښي بس هرڅه چې مو زړه غواړي پر خپل مزاج ئې سموو، چې ښه مثال ئې زموږ ځیني غیر اخلاقي کړني دي، چې په اسلام کي هیڅ ځای نه لري.

په تجارت او معاملاتو کي: زموږ تجاران چې کله ټولني ته کوم صنعت یا تجارتي توکي عرضه کوي، د نړۍ په تر ټولو ټیټ کیفیت ئې تولیدوي، چې ته به دا فکر کوي، چې دا د بل هیواد تر وخت تېر سوي خوراکي توکي، درمل او یا بل څه دي، چې دې هیواد ته ئې په خیرات کي ورکړي. همداسي کله چې یو تجار له بل هیواده څه را وارده وي نو په لوی لاس او په خپله خوښه ئې کیفیت ټیټوي او یا نو تر ټولو هغه بې کیفیته او د خلکو له نظره لوېدلي توکي راواردوي، چې د نړۍ وینې وګړي؛ که څه هم ورته اړتیا ولري په خیرات کي هم نه غواړي، چې ښه بېلګه ئې او سنۍ پاکستاني دواوي او ځیني چینائي توکي دي، چې نه څوک انکار ورڅخه کولای سي او نه ئې هم خوړلای سي.

په علم او پوهه کي: علم او پوهه تر مال او دولت ډېر ارزښت او قیمت لري، په نړۍ کي تر ټولو کارونو ارزښتمن او معظم کار دئ، چې انسان دکمال پر لور هدایت کوي. ځیني کسان خو لا وایي: چې علم او معرفت دوه وزره دي انسان کولای سي ورسره تر ډېره حده الوتل وکي. خو زموږ چلند ورسره د مزدورانو دئ، چې هیڅ یو کار ئې په سمه نه کوو، له پوهنتونه نېولې تر ښونځیو او له استادانو نیولې تر شاګردانو ټول مو د الله جل جلاله پر توکل روان کړي، نه پلان، نه هدف او نه هم موخه، یوازي وچ زور او د شا لنګته، تر کیفیت ئې په کمیت یا ډېرښت خوشحاله یو، په زرهاوو محصلین مو فارغ کړه، خو ډېر لږ ئې کمالدار او غوره کسان دي، ډېر دولسم پاس مو ورکړه خو ډېرو لږو ئې لوړو زده کړو ته لار پیدا کړه.

په ټولنیزو چارو کي: د انسان ژوند په نورو انسانانو پوري تړلی ژوند دئ، ګټې او زیانونو ئې له نورو سره په اړیکو کي خوندي دي، پر ته له یوه ګروپ او ټولني انسان خپل ژوند ته په هومره لوړوالي او چټکوالي وده نه سي ورکولی لکه په یوه ټولنه کي چې کولای سي. خو ژوند یو لړ اخلاق او ارزښتونه لري، چې باید پام ورته وسي، له بده مرغه چې دغه اخلاقي ارزښتونه موږ تر پښو لاندي کړي، یو د بل په وړاندي

زغمل، صبر، تحمل، وروري، مینه، محبت، همسایتوب، دوستي، ملگري، قرابت او نور... ټول مو له لاسه ورکړي، چي ځای ئې ځانځاني، حسد، کینې، بغض او عناد نیولی، چي یو مري او بل ئې سر هم نه راپورته کوي، د یو بل د پرمختګونو په وړاندي خنډ، یو د بل د مال او شتو په وړاندي حسد او بخیلي، یو د بل د شخصیت د له منځه وړو لپاره توطئې مو د ژوند به سر کي ځای لري، ټول یو له بله په ببره کي یو. ورو – ورو په یو داسي ټولنه بدلېږو چي ځانځاني او خودخوایي ئې د ژوند معیار وي. ډېر انسانان مو به داسي حالت کي ژوند کوي چي نیم ئې له لوږي او نیم ئې له مړېښته د شپي خوب نه سي کولای.

د ژوند په اصلاح کي: اسلام د انسانانو پر اصلاح او لار ښوونه خورا سخت ټینکار کړئ، ټول مسلمه امت ئې پر دې امر کړی، چي په انفرادي او اجتماعي ډول واړه، زاړه، ځوانان او نور... د خیر پر لوري بلنه، پر معروف امر او له منکر څه مخنیوی کوئ تر څو مو په ټولنه کي اصلاح او سمون راسي. خو له بده مرغه دا غوره توب هم له موږ څه کډه کړې، هغه د خلکو د اصلاح او سمون دنده چي راسپارل سوې، موږ شاته پرې اینبې، ډېر لږ کسان به وي چي د یوې سالمي، له خیر، فلاح، اصلاح او سمون څخه برخمني ټولني په لټه کي به وي کنه نور ټول د حسد، کینې او بغض تر سیوري لاندي د ځانځاني ښامار په خوله کي ژوند کوو او بس.

په کلتوري چارو کي: موږ افغانان په نړۍ کي د یوداسي کلتور خاوندان یو چي د نړۍ د پر مختللو هیوادونو او اولسونو سره په قطار کي له اسلامي او تاریخي مقامه په لومړۍ سر کي ځای لري، چي ټول انساني ارزښتونه پکښې خوندي دي، خو له بده مرغه چي اوس ئې په ساتلو کي پاته راغلي یو د ځینو رسنیو، مطبوعاتو، تجارانو او نورو د بې غورۍ لکبله مو په ښارونو او دفترونو کي کلتور او اخلاقي ارزښتونه اخیري سلګي وهي، هغه کمال او غوره توب چي غوره او کمالدار اولسونه ئې د خپلو نیکونو او پلرنو د میراثو نو د خوندیتوب لپاره تر سره کوي موږ نه کړ حاصل او نه مو وکولای سول چي د غرب د کلتور په ګنده ډنډ کي لوېدلي د ټولني ځوانان، پیغلي او ماشومان د فحشا او بې حیایي له دې مردار ډنډه راوباسو.

په دغه سي کړنو موږ هم خدای، هم اولس او هم هیواد ته پړه او ملامت یو. موږ د دې اولس او هیواد بربادونکي او له منځه وړونکي یو، هغه کار چي راسپارل سوئ په سمه توګه مو نه دئ تر سره کړئ، له صنعتي محصولاتو نیولې بیا د ډاکټر تر ناروغ پوري په کار کي ټمبل، بېغوره او بې کماله پاته سوي یو.

په کار خو داده چي تر هرڅه وړاندي خپل ګرېوان قاضي کړو په خپل مأموریت کي یوه شېبه ځنډ او لټي ونه کړو او نه یوه ذره سرغړاوی او عصیان، مادي ګټي شاته کړو، یوازي خدای، اولس او هیواد په نظر کي ونیسو، له هغه توجیهاتو تېرسو، چي په هرڅه کي د لټولو هڅه کوو، له انجینره نیولې تر ډاکټره او له وارداتو نیولې تر صادراتو په هرڅه کي غوره او د کمال څښتنان و اوسو، چي په دې سره به مو نه خدای ﷻ، نه اولس او نه هیواد دا کار ضایع کړي، بلکي دا او هغه نړۍ به مو هم ورسره غوره سي. لکه الله ﷻ چي فرمایي:

موږ د هغه چا اجر نه ضایع کوو چي د عمل له مخي ښه وي. دوی هغه وګړي دي چي داسي تلپاته جنتونه به ئې په برخه وي چي ترې لاندي ویالې بهېږي، د سرو زرو په لاس وندو به سینګار کړای سي او د نریو او پړېړو وریښمو شنې جامې به اغوندي په داسي حال کي چي پر تختونو به تکیه کوونکي وي، څومره غوره ثواب او ښایسته تکیه ځی[۱۱].

---

۱۱ سورة الکهف: آیت، ۳۰– ۳۱.

**بشیراحمد کمال**

# رنگونه

رڼا د شیانو د لیدلو یوه وسیله ده. سپینه رڼا (د لمر رڼا) له اوو رنگو څخه جوړه ده. په طبیعت کې د دې ښکاره ثبوت سره و زرغونه (Rainbow) ده، چې په پسرلي کې د اسمان پر مخ ښکاره کیږي. وار دواره انگریز فزیکپوه ایساک نیوټن دا ثابته کړه، چې د لمر رڼا له منشور څخه تر تېرېدو وروسته، د هغه بلې خواته په مختلفو رنگینو وړانگو بدلیږي، دا رنگیني وړانگي په سور، نارنجي، ژړ، زرغون، شین، نیلي او بنفشه یي رنگو سره ښکاره کیږي، چې د اصلي رنگونو په نامه یادیږي؛ کوم وخت چې رڼا پر یو شي ولگیږي، هغه شی د نورو رنگونو وړانگي په خپل ځان کې جذبوي او د خپل رنگ رڼاوي بیرته گرځوي، دغه منعکسه سوې رڼا د هغه شي رنگ ښیي، د مثال په ډول: تاسو د ورځې له خوا د درختي یا وني پاڼې زرغونه وینې، علت ئې د زرغون رنگ د وړانگو منعکسوالی دئ، چې پاڼې زرغونه لیدل کیږي. د فزیک (Optics) له نظره، رنگ د یو شي ظاهري ښه ده، چې د نور د انعکاس په وسیله لیدل کیږي.

څنگه چې رنگ په ژوند کې خورا ډېر کاریږي، نو ارزښت ئې هم هغونده زیات دئ. البته که په ژبه کې هر رنگ پر ځای وکارول سي، د ژبې ژبنی اصالت په ساتل کیږي. د دې ترڅنگ په وینا او لیکنه کې له لوستونکو او اورېدونکو سره په ښې پوهېدني کې مرسته کوي، ځکه نو رنگونه باید وپېژندل سي.

رنگونه پر درو گټگوریو وېشل سوي دي: اصلي رنگونه، نسبتي رنگونه او د رنگو قیدونه او صفتونه.

۱ـ اصلي رنگونه: دا رنگونه اووه دي، چې د سور، نارنجي، ژړ، زرغون، شین، نیلي او بنفشه یي په نامه سره یادیږي. په واقعیت کې سپین رنگ اصلي دئ. دا چې سپین نور د اوو رنگو یو ترکیب دئ، ځکه نو دغو اوو رنگو ته اصلي رنگونه وایي، په دغو اوو اصلي رنگو کې درې رنگونه (سور، ژړ، شین) خالص اصلي رنگونه دي، له دې درو اصلي رنگو څخه نور ترکیبي رنگونه جوړېدای سي؛ د مثال په توگه: که ژړ او سور رنگ سره گډ سي، نارنجي رنگ ځني جوړیږي، دغسې که هر رنگ له سپین رنگ سره او یا تور رنگ له نورو رنگو سره گډ سي، ترکیبي رنگ ورڅخه جوړیږي؛ مثلاً سور رنگ چې له سپین رنگ سره گډ سي، گلابي رنگ ځني جوړیږي.

۲ـ نسبتي رنگونه: په نړۍ کې خورا ډېر رنگونه جوړ سوي دي، چې د رنگولو له پاره کار ځني واخلي. دا رنگونه په نسبتي صفتي نومونو سره یاد سوي دي، دغسې په پښتو کې هم ځیني رنگونه سته، چې مېوو، گلانو او نورو شیانو ته ئې نسبت سوي وي؛ لکه: اناري، خورمايي، پسته یي نارنجي او....

۳ـ د رنگو قیدونه او صفتونه (د رنگو درجې او اندازې): په پښتو کې د (خام، تېز، اوم، پوخ، پیکه،

توربخون، روښان، خوپ) قيدي کلمې تر رنګ دمخه راځي، چي د رنګ معنا مقيدوي، يعني د رنګ درجه او اندازه(اړخيز لړوالی او ډېروالی) ښکاره کوي؛ لکه: خام زرغون، تېز زرغون او... همداراز د(تک) او(روق) کلمې د رنګ د تاکيد لـه پاره راځي، چې د رنګ ډېروالی او خالص والی ښيي؛ لکه: تک تور او روق سپين.

د رنګونو سره د ( بخن، وزمه، وشمه، وبره، چک، رنګه، مخی) وروستاړي هم راځي، چي لږوالی ئې ښکاره کوي؛ لکه: ژړبخن، خړ وزمه، توروشمه، سپين چک، شين وبره، سور رنګه او ژړمخی.

کله چي په ويناو ليکنه کي د رنګو سره دغه ټکي مراعات سي، نو بيا به وکولای سو، چي د رنګونو ترمنځ توپير وکړو، خو اوس به په لنډه توګه د ځينو رنګونو په اړه وړغېږو:

۱ـ سور(Red): اکاډميسن پوهاند علامه رشاد د «ګيولډن شتت الماني او د هغه پښتو فرهنګوټي» په څېړنه کي د (سير) لغت په اړه داسي ليکلي دي: "سير د سور کلمې ممال شکل دئ، د پکتيا ځيني قبيلې اوس هم (سور) ته (سير) وايي"(لغوي څېړنه: ۲۲۷مخ). لکه د وينو رنګ. رحمان بابا وايي:

ښادي غم غوندي اسانه مونده نه شي

سور په خپلو وينو لعل د بدخشان دئ

(ديوان: ۱۹۹مخ)

۲ـ نارنجي(orange): د نارنج د پوستکي رنګ، سوربخن ژړ، هغه رنګ چي لږ غوندي سور رنګ ولري (لغتنامه دهخدا).

۳ـ ژړ(Yellow): په پارسي (زرد) ورته وايي. په(سپېڅلې پښتو) کي د زرد لغت په (ژړ، ژير ،زير) معنا سوی دئ. د کندهار تلفظ ئې(ژړ) دئ او په نورو لهجو کي ئې (ژير، زير) بولي. رنګ ئې؛ لکه د ليمبو، کوچـو، د هګـۍ ژړ او ژړو ګـلا نـو رنـګ. مولـوي عبدالغفار بريالی وايي:

يا خوني شليل له هجره مخ تناکي

يـا به ژړ مـخ زردالو وهي مسواک

(اهار ـ ۹۴مخ)

۴ـ زرغون(Green): له اوو اصلي رنګونو څخه يو رنګ دئ؛ لکه د وښو رنګ يا د درختو او ونو د پاڼو رنګ. په پارسي(سبز) ورته ويل کيږي. ښکارندوی غوري وايي:

زرغونو مځکو کـې ځل کا لکه ستوريه

چي پر هسک باندي ځلېږي سپين ګلونه

(پټه خزانه ـ ۸۹مخ)

۵ـ شين (Blue): يو راز خالص اصلي رنګ دئ؛ لکه د بحيرې د اوبو رنګ چي شين ايسېږي(پښتو ـ پښتو تشريحي قاموس). په پارسي کـې (آبـي) او(کبود) ورته وايي. خوشحال خان وايي:

په سر د ياسه دا شين سيحون ګوره

پـکي د ستـورو ماهيـو يون ګوره

(کليات: ۴۲۳مخ)

۶ـ نيلي(Indigo): د نيل رنګ، توربخون شين رنګ(لغتنامه دهخدا).

۷ـ بنفشه يي(Violet): چونيا(سپېڅلې پښتو). بنفشي د عربي د (بَنَفْسَجِي) مفغن شکل دئ. په پارسي کي ئې (بنفش) بولي. دا رنګ د سور او شين رنګ له ګډېدو څخه په لاس راځي؛ لکه: د بانجڼ د

پوستکي رنګ(لغتنامه دهخدا). مولوي عبدالغفار بريالی وايي:

بنفشي پالنګ پر مخکه غوړولي

پتوني اعلان کوي وای جنګيالي يم

(اهار: ۲۰۳مخ)

۸ـ سپين(White) : د تور ضد، روښانه او روڼ رنګ دئ؛ لکه د واوري يا شيدو رنګ. هر رنګ چي له سپين رنګ سره ګډ سي، روښان رنګ ورځخه جوړيږي. يونس وايي:

د نېکی فرشته مي سپين کاغذ ونغاړي

د بدی دفتر مي تور که وبېګا ته

(دېوان: ۴۷مخ)

۹ـ تور(Black): د سپين ضد، يو راز رنګ دئ؛ لکه د سکرو رنګ. دا رنګ چي له نورو رنګونو سره ګډ سي، پيکه او تور بخون رنګ ځني جوړيږي. يونس خيبري وايي:

تېر ساعت به بيرته را نه شي يونسه!

که دا تور بانه د زړه په وينو رنګ کړې

(دېوان: ۹۷مخ)

۱۰ـ ارغواني( Purple) : ارغواني د عربي د (اُرجُوَانِي) مفغن شکل دئ. د ارغوان د ګل په رنګ، بنفشه يي وزمه سور، هغه سور رنګ چي بنفشه يي ايسي يا هغه سوررنګ چي توره لمبه کوي (لغتنامه دهخدا). بانجني. رحمان بابا وايي:

ارغواني جامې يې واغوستې رحمانه

بيا يې جوړ کړل ستا د قتل اسبابونه

(دېوان :۱۷۳مخ)

۱۱ـ زعفراني( Saffron) : د زعفران رنګ، (تک) ژړ رنګ(لغتنامه دهخدا). ژړ نارنجي ته ورته رنګ، نارنجي وزمه ژړ رنګ. عبدالقادر خان خټک وايي:

ته چي هسي زعفراني جامې اغوندې

زر به کړې د يار څهره کورکمني

(دېوان : ۳۱۲مخ)

۱۲ـ خړ : (Gray): خاکي رنګ(پارسي). په (پښتو ـ پښتو تشريحي قاموس) کي سپېره د(خړ رنګ) په معنا راغلی دئ. دا رنګ د تور او سپين له ګډېدو ځخه په لاس راځي(انګليسي پښتو قاموس). خليل خان نيازی وايي:

خړي اوريځي ژاړي له پاسه

کويله رغ کا بېلتون له لاسه

(پټه خزانه : ۱۰۳مخ)

۱۳ـ بور(Brown) : تور بخون سور رنګ (مکتبي قاموس). په (سپېڅلي پښتو) کي خاکي سرخ په (بور) معنا سوی دئ. کم رنګه سور، پيکه سور(فرهنګ جامع معين). نسواري رنګ. مولوي عبدالغفار بريالی وايي:

خړ و بور يې بوري سترګي په کتو کا

د غمزو له نازه مومي سوزاني رنګ

(اهار: ۹۵مخ)

۱۴ـ زنګالي(زنګاري): استاد محمد معصوم هوتک د زنګاري په اړه کښلي دي: "يو راز رنګ ته ويل کيږي. د کندهار تلفظ ئې (زنګالي) دئ"(له کندهاره

تـراتکـه: ۲۵۹مـخ). زرغـون رنـګ، توربخـون پیکـه زرغون(لغتنامه دهخدا). رحمان بابا وايي:

دګـلــګونو میو ناوې راته نـاسته

زنګاري کمیس اغوستی د مینا دئ

(دیوان: ۱۸۳مخ)

۱۵-چونیا(Violet): بنفشه يي رنګ، دانګریزي (Purple) (دلـوی مخلـص دکـلام لغـوي زېرمـه: ۴۲مخ)، همدا راز په(سپېڅلې پښتو) کي بـنفش په (چونیا) معنا سوی دئ. لوی مخلص وايي:

اوس بیا هيڅ ئې تر هغو موندلای نه سي

څودرست مخ ئې په چاپېرو چونیا نه وي

(دلوی مخلص دکلام لغوي زېرمه: ۴۲مخ)

۱۶-لاجوردي(Ultramarine blue ،Azure): د لاجورد رنګ، (تک) شـین رنګ(لغتنامـه دهخدا). یو راز ترکیبي شین رنګ دئ، چي لږ سور رنګ ورسره ګډ وي (فرهنګ جامع معین). خوشحال خان وايي:

چي رباعي د خوشال خان دي

دلاجوردیو غشو په شان دي

(کلیات: ۴۶۷مخ)

۱۷-اناري: دانار رنګ یا هغه رنګ چي دانار د پوستکي په رکم وي(لغتنامه دهخدا). یو راز سور رنګ دئ. مولوي بريالی وايي:

ګـرېـوان مـــي په ژړلو سو، سور رنګه اناري

له درده مي همېش ځي تر لېمو اوښکي جاري

(اهار: ۲۹۰مخ)

۱۸ـآتشي(Fire،Scarlet): دا رنګ پـه لغتنامـه دهخدا کي د (اور رنګ، تک سور) پـه معنـا راغلـی دئ. په(انګليسي پښتو قاموس) کي د (Scarlet) لغت پـه (تک سـور، پـوخ سـور، آتشـي رنـګ) معنـا سـوی دئ. مولوي بريالی وايي:

سرې سترګي آتشي راځي میدان ته سرخي پوشه

پیـــاله راکه مـــــدهــوشه

۱۹ـپسـته يـي: د پسـتې د مغـز رنـګ(مغز ئـې زرغون رنګ لري)، روښان زرغـون، هغـه زرغـون رنـګ چي لږ ژړه لمبه کوي (لغتنامه دهخدا). مولوي بريـالی وايي:

یـــابـــه وي الـــو بالورنګ مهربانه

یا پیسته رنګه زرغون زړه سینه چاک

(اهار: ۹۴مخ)

۲۰ـآسـماني( Light blue or Sky blue ): روښان شین، اسماني شین. مولـوي عبـدالغفار بريـالی وايي:

فلک ورکی زما و زړه ته اسماني رنګ

لکه ګډ دود په لـمبه ارغواني رنـــګ

(اهار: ۹۵مخ)

۲۱ـالـــواني: ســور بخون، سور(پښـــتو پښـــتو تشريحي قاموس). خوشحال خان وايي:

لکه پیدا شي هسي فنا شي

الواني پاني نوشي هم زهر

(کلیات: ۵۳۲مخ)

۲۲ـ ایرَن(Ash Grey): ایرو ته ورته رنګ دئ، چي په پارسي کي ئې (خاکستري) بولي.

۲۳ـ پېروژه یي (Turquoise): د پېروژې رنګ، یو راز روښانه شین رنګ دئ، چي لږ زرغون ایسېږي یا هغه زرغون رنګ چي لږ زرغون ورسره ګډ وي. زرغون وزمه روښانه شین (لغتنامه دهخدا).

۲۴ـ ګلابي(Pink): ګلابي، یو ډول سور رنګ دئ؛ لکه د کندهاري ګل ګلاب د ګل رنګ. هغه سپین رنګ چي سوروالی ولري (لغتنامه د هخدا). شیرچایي.

۲۵ـ نسواري (Brown): بور، دا رنګ له تور او سور رنګ څخه ترکیب سوی دئ(سپېڅلې پښتو).

۲۶ـ نخودي (Tan): یو راز رنګ ویل کیږي، چي نخود ته ورته وي. کم رنګه ژړ، پیکه ژړ (لغتنامه دهخدا). ژړ رنګ چي له سپین رنګ سره ګډ سي، نخودي رنګ ځني جوړیږي.

۲۷ـ پیازي(Reddish): سوربخن. د سور پیاز د پوستکي په رنګ یا د ځینو پیازو د پوستکي سور رنګ، هغه څه چي پیازي رنګ لري؛ لکه پیازي لعل (د کندهار په خاکرېز ولسوالۍ کي د پیازي لعل په نامه کان هم سته) او پیازي (سرې) اوښکي (لغتنامه دهخدا).

۲۸ـ کریمي(Beige): اوم ژړ(انګلیسي پښتو قاموس). ژړبخن سپین رنګ، د کریمو رنګ(لغتنامه دهخدا). خام ژړ.

۲۹ـ لیمبویي(lemon): لیمویي، روښان ژړ، د لیمبو د پوستکي رنګ(لغتنامه دهخدا). د لیمبو د اوبو رنګ.

۳۰ـ سورمایي(Dark blue): توربخون شین. تور او تت شان ابي رنګ (پښتو پښتو تشریحي قاموس).

۳۱ـ ماشي: د ماش په رنګ یا د ماش د دانې رنګ، خړ وزمه توربخن زرغون(لغتنامه دهخدا).

۳۲ـ نکرځي(Henna,Fawn): حنائي(پارسي). پیکه ژړ بخن نسواري رنګ(انګلیسي پښتو قاموس). د نکریزو رنګ، سوربخن ژړ، هغه ژړ رنګ چي سره لمبه کوي(لغتنامه دهخدا).

۳۳ـ جګري(Dark red): داینې رنګ، توربخن سور.

۳۴ـ یشمي: تېز زرغون رنګ (فرهنګ جامع معین). تورمخی زرغون، هغه توربخون زرغون رنګ چي لږ سور او ژړ ورسره ګډ وي (لغتنامه دهخدا).

۳۵ـ خورمایي (Russet): د خرما رنګ. ژړ بخون نسواري یا سوربخون نسواري(انګلیسي پښتو قاموس). تور رنګ چي له سره رنګ سره ګډ سي او بیا ژړ رنګ ورسره ګډ سي، خورمایي رنګ ځني جوړیږي.

۳۶ـ غنم رنګه(Tawny): أسْمر(عربي). ګندم رنګ(پارسي). په «سپېڅلې پښتو» کي ګندم رنګ په (اَرغُوش) معنا سوی دئ.

د غه راز نور نسبتي رنګونه هم سته؛ لکه طلایي(Golden)، نقره یي(Silver)، شتري(light brown)، اناپي(توربخون سور)، بدني(د بدن رنګ)، هېلي(اېلي)، پولادي(فولادي)، سمېتي، غوره یي، جوري، شوبیني او ....

**ماخذونه:**


۱ـ امرخېل، څېړنوال عزيزالله او نور. پښتو ـ پښتو تشريحي قاموس. کابل: د افغانستان د علوموا کاډمي د ژبو او ادبياتو مرکز، ۱۳۸۳ل.

۲ـ پالوال، ډاکتر عبدالرازق. معياري پښتو. يونايټيډ پريس، شال. ۱۳۸۴ل.

۳ـ روهي، څېړنوال محمد روهي او نور. انګليسي پښتو قاموس. پېښور: آريانا کتب خانه، ۱۳۸۱ل.

۴ـ کاکړ، لعل محمد او حبيبي، عبدالحی. سپېڅلې پښتو. کندهار: علامه رشاد خپرندويه ټولنه. ۱۳۸۹ل.

۵ـ هوتک، محمد معصوم. ۲۰۱۰ع. د لوی مخلص د کلام لغوي زېرمه. www. Hotakonline.com

۶ـ هوتک، محمد معصوم. له کندهاره تر اټکه. کندهار: علامه رشاد خپرندويه ټولنه. ۱۳۸۹ل.

۷ـ رشاد، عبدالشکور، پوهاند. لغوي څېړنه. علامه اکاډيمي. ۱۳۸۷ل.

۸ـ رشاد، عبدالشکور، پوهاند. مکتبي قاموس. کوټه: پښتو اکېډمي بلوچستان. ۱۳۹۴ل.

۹ـ لغتنامه دهخدا

۱۰ـ فرهنگ جامع معين.


**احسان الله زيارمل**

## غزل

**په يو لاس کې دي کتاب دئ انډيواله**
**په بل لاس کې دي رباب دي انډيواله**

**اې ته واوره مين سوی څو به نه يې!؟**
**نن دي بيا فکر خراب دئ انډيواله**

**مېلمانه دي زموږ کوټه کې ته هم راسه**
**يو دئ (قيس) او بل (تراب) دئ انډيواله**

**چې د زړه خبره کړم بدن مې رېږدي**
**لړ مې زړه کې اضطراب دي انډيواله**

**يو په بل پسې غزل ليکم زيارمله**
**پروت مې زړه کې لوی درياب دئ انډيواله**

**محمد الله افغان**

## غزل

**ته هم د خپل ښايست په اور سوځېږې او زه هم**
**وطنه څنګه کور په کور سوځېږې او زه هم**

**خليل نسته د وخت د نمرودي نظام په امر**
**مؤمنه د لمبو په زور سوځېږې او زه هم**

**ثواب دي راځه واخيسته ښايستو ستر ګو په پور**
**بدل کې ته د دغه پور سوځېږې او زه هم**

**پوهېږمه ستا هم زما په شاني زړه نازک دئ**
**دلې د يوماښوم په شور سوځېږې او زه هم**

**تر څو به لا افغانه دغه ظلم وي او موږ**
**تر څو به لا افغانه نور سوځېږې او زه هم**

جان محمد مهربان

# د مغزونو فرار

# Brain Drain

## (پر افغانستان متمرکزه لیکنه)

### (لومړی برخه)

**سریزه:**

پوښتنه راتـه پیـدا سـوه چـي افغانـان ولـي لـه افغانسـتان یـا د نـورو هیوادونـو اوسـېدونکي لـه خپلـو هیوادونو څخه په قانوني یا غیر قانوني توګـه مهاجرت کوي، په خپلو هیوادونو کي وظیفې پر ېږدي او د هیواد دباندي داسي وظیفې انتخابوي چي نه ئې له مسلک او نه ئې له شخصیت سره جوړیږي؟ د پوښتني د جواب پایلـه دغـه تحقیقـي لیکنـه سـوه چـي لـومړی وار د ۱۳۹۲هـ ش کال د قوس پر ۱۸ مه نېټه په لر او بـر ټکـی کـام کـي د «دمـاغونو د پرواز» تـر عنـوان لانـدي خپـره سوې ده، چي ځیني نیمګړتیاوي ئې لرلې. دوهـم وار مـي هغـه د لومړي وار نیمګړتیـاوي او تیروتنـي اصلاح کړي دي. نوي معلومات مي پر اضافه کړل پـه خاصـه توګه دافغانستان په اړه مي نور معلومات را ټول او دلتـه ځای پر ځای کړل. د ملګرو په مشوره او تر یوار بیا فکر کولو وروسته مې عنوان «د مغزونو فرار» وټاکی.

د انګلیسي Brain د (ماغزه، هوښ، ذکاوت ماغزه الـوزول، مـاغزه تویـول) معنـی لـري. دمـاغ د عصـبي سیسـتم هغـه برخـه ده چـي د جمجمـې پـه دننـه کـي پـروت دئ، عصـبي حجـرې لـري، د فکـر او د عصـبي سیستم کنټرولو مسؤلیت لري. ( میرریم ویبستر ټکی کام ).

د لیکني دسر لیک دوهمه کلمه Drain د (وچول، اوبـه ځنـي ایسـتل، تشـول، زېـم ایسـتل، کـرار ـ کـرار کمزوری کېدل، ورو ـ ورو د عایداتي منـا بعـو کمېـدل) مفهوم ور کوي. (پښتو کمپیوټري قاموس).

لـه یـوه هیـواد څخـه بـل هیـواد تـه د تخنیکـي، مسـلکي او مـاهرو کـادرونو مهـاجرت تـه د مغزونـو یـا د

بشـري سـرمايې پـرواز ويـل کيـږي. (انګلیسـي ويکيپيډيا).

د مغزونو فرار لومړی د هغو تکنالوژيکي کارمندانو له پاره کارول کېدئ چې خپل هيواد به ئې پرېښووئ، نورو هيوادونو تـه بـه مهاجر سول. نن دغـه اصطلاح ډېره پراخه سوې ده، په طب کي هم کاريږي چي هلته ځان ته بېل مفهوم لري. اوس دغـه اصطلاح ټول هغـه تعليم يافته او مسلکي وګړي په ځان کي رانغاړي چي له يوه هيواد او اقتصادي سيکټور څخـه بـل هيواد تـه د ښه ژوند کولو او ښو امتيازاتو له پاره مهاجرت کوي.

د مغزونو فرار ته د اقتصادي مصرف پـه نظر کتل کيږي ځکه چي د يوه هيـواد اوسېدونکي د خپلـو هغـو ارزښتناکو مهارتونو سره بل هيواد ته ځي چي دولتونو ئې په کلونو-کلونو سرمايه ګذاري ورباندي کړي وي. د مغزونـو فـرار د مـالي سـرمايې پـرواز تـه ورتـه دئ. يـو هيواد د مهارتونو له کمبود سره مخ وي، بـل هيـواد بيـا لـه مهـارتونو څخـه ګټـه اخلـي چـي دغـه حالـت تـه د دمـاغونو حصـول (Brain Gain) وايـي. د دمـاغونو حصول د موضوع د عنوان ضد حالت دئ.

کليدي کلمې: د مغزونو فرار، کادرونه، مهاجرت، سياسي، ټولنيز او اقتصادي حالت، پـه افغانستان کـي ودونه، ګټي او تاوانونه

د ليکني اهداف: دغه ليکني تر لوستلو وروسته بـه لوستوونکي پوه سي چي:

يـو: پـه افغانسـتان کـي کومـو داخلـي او خـارجي لاملونو د مغزونو فرار رامنځ ته کړی دئ؟

دوه: په افغانستان کي وادونه د مغزونو په فرار کي څه رول لري؟

درې: د مغزونو د فرار په ګټو، تـاوانونو او حـل لارو پوهېدل او د مخنيوي لاري ورانديز کول.

اصلي موضـوع: د «د مغزونـو فـرار» اصطلاح هغـو مـاهرو، مسـلکي او لـه پوهنتونونـو څخـه فارغـه سـوو کـادرونو تـه کـاريږي چـي لـه پـر مختلوونکو هيوادونو څخه و پرمختللو هيوادونو ته مهاجرت کوي. د مغزونو فرار د پرمختلوونکـو هيوادونـو د پرمختـګ پـه وړانـدي داسي يو خنډ دئ لکه بې کـاري، فقـر، فسـاد او نـوري اقتصادي ستونزي.




تر ۲۰۰۰ مېلادي کاله پـه نـړۍ کـي شـل ميليونـه مسـلکي کـادرونـه لـه خپلـو هيوادونـو څخـه د بانـدي د اقتصادي همکـارۍ او انکشـاف مؤسسـې (OCED) پـه غړو هيوادونو کـي مهـاجر ول، چـي پـه لسـو کلونـو کـي ۷۰٪ زياتوالي ښئي او دوه پر درې ئي لـه پرمختلوونکـو هيوادونو څخه و پرمختللو هيوادونـو تـه مهاجر سـوي ول. د ملګرو ملتونو د نړۍ وال مهاجرت لـه ډاټـا بـېس سره سم، نړۍ وال مهاجرت له ۱۹۶۰ مېلادي کـال لـه پنځـه اويـا (۷۵) ميليونـه څخـه دوه سـوه څـوارلس (۲۱۴) ميليونه ته په ۲۰۱۰ کي زيات سو. لـه ۱۹۶۰ مو کلونو څخه وروسته، په شتمنو هيوادونو کي د نړۍ وال مهاجرو نسبت تر پخوا درې چنده ډېر سوی دئ.

د مغزونو د فرار د خلا ډکولو له پاره ډېر هیوادونه کوښښ کوي چې له نورو هیوادونو څخه محصلین جلب او وساتي. دغه حالت په غریبو هیوادونو کې د بشري قوې جوړښت ته بدلون ورکوي ځکه چې په یوه هیواد کې د بشري قوې د کمبود سبب کیږي. د هیوادونو حالاتو ته په کتلو سره، د مغزونو فرار د یو ملت د خوشبختۍ او بدبختۍ سبب کیږي. (فریډریک، ۲۰۱۱).

د مغزونو فرار مې له اروپا څخه را پیل کړی او پر افغانستان مې پای ته رسولی دئ:

**اروپا:** انګلیسي وکیپیډیا لیکلي دي چې په اروپا کې د مغزونو د فرار مېلان پر دوو برخو وېشل کیږي. لومړی، هغه با استعداد ساینس پوهان دي چې له غربي اروپا څخه امریکا متحده ایالاتو ته مهاجرت کوي. دوهم، هغه ماهر کارګران دي چې له مرکزي او له جنوبي شرقي اروپا څخه غربي اروپا ته مهاجرت کوي. ددې ستونزې د حل له پاره اروپایي اتحادیې د بلو کارټ پالیسي/قانون چې د امریکا د متحده ایالاتو ګرین کارټ پالیسي ته ورته دئ، رامنځ ته کړ. د بلوکارټ د پالیسي له مخي، اروپایان کوښښ کوي چې په راتلوونکو دوو لسیزو کې شل میلیونه کارګران له اسیا، افریقا او لاتین امریکا څخه وباسي او په خپلو هیوادونو کې وظیفې ور پیدا کړي.

**غربي اروپا:** په ۲۰۰۶ مېلادي کال کې دوه لکه پنځوس زره (۲۵۰،۰۰۰) غربي اروپایانو د امریکا متحده ایالاتو، یو لک و څلور شپېته زره، دوه سوه پنځه اتیا (۱۶۴،۲۸۵) استرالیا، څلویښت زره، څلور سوه پنځه پنځوس (۴۰،۴۵۵) کاناډا، اووه دېرش زره، نهه سوه شپږ څلویښت (۳۷،۹۴۶) نیوزیلاند ته مهاجرت کړی دئ. د جرمني څخه یولک و پنځه پنځوس زره، دوه سوه نوي (۱۵۵،۲۹۰) جرمنیان وتلي دي. ډېری جرمنیان د اروپا په داخل کې مهاجرسوي دي.

په اروپا کې د کارګرانو د مهاجرت دغه ارقام تر ټولو لوړ عدد ښئي چې په اروپا کې د دوهمې نړۍ والې جګړې د مهاجرت له رقم سره مساوي دئ.

په غربي اروپا کې پرتګال هغه هیواد دئ چې د مغزونو له فراره ډېر ځوریږي. پرتګالیان و انګولا او برازیل ته مهاجرت کوي. د تکنالوژي، روغتیا او بانکي خدماتو مسلکي کادرونه انګلستان ځني جلبوي. پرتګال خپل ۱۹،۵٪ ماهر نفوس له لاسه ورکړی دئ. پرتګال کوښښ کوي چې دغه خلا د استرالیا، کاناډا، سویسزرلنډ، جرمني او استریا په کادرونو ډکه کړي.

**مرکزي او شرقي اروپا:** د شوروي اتحاد د ۱۹۹۱ سقوط راهیسي، له روسیې څخه تر پنځه لکه (۵۰۰،۰۰۰) زیات ساینس پوهان او کمپیوټر پروګرامران تللي دي. په شرقي اروپا کې د مغزونو فرار یو عام مشکل دئ. مرکزي او شرقي اروپا له ارلنډ او انګلستان سره د خپلو ماهرو کارمندانو د مهاجرت اندېښنې شریکي کړي دي مګر تر اوسه ئې نتیجه ورکړې نه ده. د ۲۰۰۳ راهیسي لیتوانیا (Lithuania) یو لک (۱۰۰،۰۰۰) ځوان او تعلیم یافته کادرونه له لاسه ورکړي دي چې ډېری ئې ارلنډ ته ځني تللي دي. ارلنډ مخکي په عیني مشکل اخته وو.

دغسي حالت په پولنډ کې هغه مهال رامنځ ته سو کله چې پولنډ د اروپایي اتحادیې غړیتوب ومنئ. له اروپایي اتحادیې سره د پولنډ د غړیتوب په لومړي کال یولک (۱۰۰،۰۰۰) ثبت سوو پولنډیانو انګلستان ته د کار کولو له پاره مهاجرت وکړ.

د پولنډ لوی بانک (PKO Bank Polski) د څېړنې سره سم، درو شپېته فیصده (۶۳٪) پولنډیان په انګلستان کې مهاجر دي. دغه پولنډیان له ۲۴ څخه تر ۳۵ کلونو عمر لري او څلوېښت فیصده (۴۰٪) ئې له پوهنتونونو څخه فارغ دي. په پولنډ کې د معاشاتو د چټکې ودې سمون، پرمختللو نکي اقتصاد، د پولنډي سکې زلاټې (zloty) قوي ارزښت او کمېدونکي بې کاري د پولنډ اقتصادي حالت سم کړي دئ نو ځکه د مغزونو فرار هم ورسره کم سوی دئ.

**جنوبي شرقي اروپا:** د کمونیست رژیم تر سقوط وروسته، البانیا د مغزونو فرار تجربه کی. له ۱۹۹۱ راهیسې د البانیا او سېدونکي ایتالیا، یونان، انګلستان، کاناډا او امریکا متحده ایالاتو ته د کار له پاره مهاجرت کوي. د تېرو لسو کلونو راهیسې د البانیا تعلیم یافته او مسلکي کادرونه خپل وطن پرېږدي، هغو هیوادونو ته ځي چې هورې ښه امکانات، معیاري ژوند او امنیت وي. د پرتګال، ارلنډ، ایټالیا، یونان، هسپانیې ډېری اوسېدونکي استرالیا، برازیل، انګولا او ارجنټینا ته د کار کولو له پاره مهاجرت کوي.

**انګلستان:** د ۲۰۰۰م کلونو په شا او خوا کې، درې اعشاریه پنځه (۳،۵) میلیونه انګرېزان له انګلستان څخه وتلي دي. د انګرېزانو مهاجرت په خاصه توګه استرالیا او د امریکا متحده ایالاتو ته سوی دئ. په ښه اقتصادي فضا کې کار کول هغه څه دي چې ډېری انګرېزان مهاجرت پسې کوي.

ترکیه: د ۱۹۶۰ کلونو په شا او خوا کې ډېرو ماهرو ترکي کارګرانو او کارمندانو د طبي ډاکټرانو او انجینرانو په شمول له ترکیې څخه مهاجرت وکړ. هغه مهال په ترکیه کې سیاسي بې ثباتي او د ۱۹۶۰ فوځي کودتا د ترکیانو د مغزونو د فرار عوامل ول. په دې ورستیو لسیزو کې ډېرو ترکي مسلکي کادرونو له ترکیې څخه مهاجرت کړی دئ البته د هغو محصلینو په شمول چي په خارج کې زده کړې کوي. کله چي ئې زده کړې پوره سي، بیرته خپل هیواد ته نه ځي. د ترکي کارمندانو د مغزونو فرار ته د میډیا پام سو. په ۲۰۰۰ مېلادي کال کې ترکیې حکومت اقدام وکړ چې ستونزه وڅېړي.

په ۲۰۱۰ کې د ترکیې د مالیې وزیر یو اټکل وړاندي کی چي په ۲۰۵۰ مېلادي کې به د ترکیې ملي نا خالص تولیدات پنځه الی شپږ (۵-۶) ټرېلیونو ته ورسیږي، که ترکیه دغه ټارګیټ ته ځان ورسوي، د مغزونو له فراره به ژغورله سوې وي.

**افریقا:** د مغزونو فرار افریقایي هیوادونه داسې راګیر کړي دي چي د فقر له کرښې څخه وتلای نه سي. په افریقایي هیوادونو کې، نایجریا، کینیا او ایتوپیا (حبشه) د مغزونو له فرار څخه ډېر ځورېږي. افریقایي هیوادونه د کاله د یو لک او پنځوس زره (۱۵۰،۰۰۰) خارجي/غربي کارمندانو او مسلکیانو پر استخدامولو تقریباً څلور میلیونه امریکایي ډالره مصرفوي.

ایتوپیا/حبشې له ۱۹۸۰ څخه تر ۱۹۹۱ کاله ۷۵٪ ماهر کاري ځواک له لاسه ورکړی دئ. حبشه ډاکټران ښه روزي خو دغه ډاکټران تر حبشې د امریکا متحده ایالاتو د شیکاګو په ایالات کې ډېر لیدل کیږي ځکه چي د افریقا په خدماتي سیکټور کې د کارمندانو معاشات دونده کم دي چي د دوی اساسي ضرورتونه نه په حلیږي.

په افریقا کې ډېر پوهنتونونه د باتجربه استادانو له کمښت سره مخ دي. کله چي ئې ځوانان له پوهنتونونو څخه فارغ سي؛ غربي هیوادونو ته د کار له

پاره مهاجرت کوي. د مغزونو فرار د افریقا د اقتصادي پاته والي عامل دئ. ویل کیږي چې دغه حالت به د نړیوالتوب له سببه په راتلوونکو لسیزو کې هم دوام ولري.

گانا اوس درې زره شپږ سوه (۳،۶۰۰) ډاکتران لري چې د هیواد په شپږ زره اووه سوه (۶،۷۰۰) اوسېدونکو ئې یو ډاکټر رسیږي. د امریکا په متحده ایالاتو کې د څلور سوه دېرشو (۴۳۰) کسانو له پاره یو ډاکټر سته. د گانا ځوان ډاکتران او نرسان انگلستان، د امریکا متحده ایالاتو، جمیکا، او کاناډا ته د زیات معاش او ښه کاري شرایطو له پاره مهاجرت کوي. د گانا رسمي احصایه وایي چې د۱۹۹۳ څخه تر ۲۰۰۰ کاله د هیواد ٪۶۸ روزل سوي ډاکتران ځني مهاجر سوي دي. جنوبي افریقا هم یو له هغو افریقایي هیوادونو څخه ده چې د تیرو شلو کلونو راهیسې د مغزونو له فرار سره مخ ده.

داسې باور کیږي چې د جنوبي افریقا د مغزونو فرار د منطقې پر اقتصاد تاثیر کولای سي ځکه چې یوازې د ډاکترانو له پرواز څخه جنوبي افریقا ته یو اعشاریه یو څلوېښت بیلیونه ($1,41bn) تاوان رسیږي، کوربه هیوادونه خپلې گټې تر لاسه کوي. مثلاً انگلستان د جنوبي افریقا له ډاکترانو څخه د کاله دوه اعشاریه اووه ($۲،۷bn) بیلیونه امریکایي ډالر حاصلوي.

په خدماتي سیکټور کې کم معاشات او مزدوري، د ژوند کولو غیري معیاري حالت، د ترانسپورټ او سرپناه کمښت، نامساعد کاري چاپیریال، د مسلکي پرمختگ کم امکانات، د تحقیق او انکشاف له پاره کمه بودیجه، د مسلکي ماشینري کموالی، اجتماعي ناراحتي (Social unrest) سیاسي شخړې، جنگونه، د تعلیمي نصاب او سیستم بې کیفیتي، د ازادۍ کموالی، د پرمختگ او وظیفو په ځایونو کې تبعیض او داسې نور د افریقا د د مغزونو د فرار عوامل دي.

چټکه اقتصادي وده او انکشاف او د منځنۍ طبقې ظهور د افریقا د مغزونو فرار ورځ په ورځ ختموي. له ۲۰۰۱ څخه تر ۲۰۱۰ کاله د نړۍ لس ترټولو چټک وده کوونکي هیوادونه په افریقا کې ول.

اقتصادي انکشاف، د تکنالوژي پېژندنه، چټک انټرنیټ، د موبایل کمونیکېشن ښه سیستم، تعلیم یافته نفوس او مساعد کاروباري چاپیریال افریقایانو ته زمینه برابره کړې ده چې خپلو کورونو ته ور ستانه سي نو ځکه خو اوس ډېر افریقایان په خپلو هیوادونو کې کار کوي.

استرالیا: د استرالیا په اړه مې د پاسفیک جزیرو او نیوزیلاند په اړه دغه لاندې معلومات په انگلیسي ویکیپیډیا کې پیدا کړل:

**د پاسفیک جزیرې**(Pacific Islands): د پاسفیک ډېرې جزیرې انگلستان تر ۱۹۶۰ او ۱۹۹۰ کلونو مستعمره کړې وې؛ اوسېدونکو ئې استرالیا او نیوزیلاند ته مهاجر سوي ول. د مستعمرو تر ختمېدو وروسته په فیجي (Fiji) ټونگا (Tonga) او ساموا (Samoa) کې د مغزونو فرار ډېر کم واقع سوی دئ.

د پاسفیک هغه جزیرې لکه تاحیتي (Tahiti) چې فرانسې مستعمره کړې وې او یا د امریکا متحده ایالاتو ور باندې مسلط ول، اوسېدونکو ئې فرانسې، د امریکا متحده ایالاتو او کاناډا ته مهاجرت وکی.

**نیو زیلاند:** د ۱۹۹۰ کلونو په جریان کې به هر کال د دېرش زره (۳۰،۰۰۰) نیوزیلاندیانو مهاجرت کاوه. په ۲۰۰۵ کې د اقتصادي همکارۍ او انکشاف

مؤسسې یو راپور نشر کی. په راپور کې ویل سوي وه چې څلرویشت اعشاریه دوه (۲۴،۲) فیصده نیو زیلاندیان له هیواد څخه دباندې په خاصه توګه په استرالیا کې مهاجر دي. په ۲۰۰۷ کې څلرویشت زره (۲۴،۰۰۰) نورو نیوزیلاندیانو استرالیا ته مهاجرت وکی.

د ۲۰۰۸ کال په انتخاباتي کمپاین کې ملي ګوند په خپل کمپاین کې د مقابل کارګر ګوند چې پر واک وو، ناتوانایي په ګوته کوله چې نیوزیلاندي کارګران او کارمندان د هیواد په دننه کې ساتلای نه سي. ملي ګوند د سړک پر غاړه پر لوحو لیکلي ول چې: خپلو دوستانو ته د خدای په اماني پرځای، لوړ ټکس اخیستلو ته خدای په اماني ووایاست. "Wave goodbye to higher taxes, not your loved ones" ملي ګوند په دغه طریقه انتخابات وګټل. څلور کاله وروسته د نیوزیلاندي کارمندانو مهاجرت تر پخوا پسې شدید سو. په ۲۰۱۲ کې درو پنځوس زرو (۵۳،۰۰۰) نیوزیلاندیانو له خپل هیواد څخه مهاجر سول. د نیوزیلاند صدراعظم جان کې نړۍ وال مالي بحران د نیوزیلاندي کادرونو د فرار سبب وبلی. د جان کي د حکومت له پیل ۲۰۰۸ څخه بیا تر ډیسمبر ۲۰۱۲ یو لک و اویا زره (۱۷۰،۰۰۰) نیوزیلاندیان استرالیا ته مهاجر سوي دي.

که له یوې خوا نیوزیلاند خپل ماهر کادرونه له لاسه ورکوي له بلې خوا بیا بیرته د خپل نفوس د یوه فیصد په اندازه مسلکي کسان له نورو هیوادونو څخه تر لاسه کوي.

**شمالي امریکا:** په شمالي امریکا کې پر کاناډا، د امریکا متحده ایالاتو، لاتین امریکا، کارابین او کیوبا په اړه لاندې معلومات راټول کړي دي.

**کاناډا:** په ۱۹۲۰ مو کلونو کې د کاناډا تر شل فیصده ډېرو انجینرانو او ساینس پوهانو د امریکا متحده ایالاتو ته مهاجرت کاوه. له ۱۹۶۰ څخه بیا تر ۱۹۷۹ کاله له کاناډا څخه اوولس زره (۱۷،۰۰۰) انجینران او ساینس پوهان امریکا متحده ایالاتو ته مهاجر سوي ول. په ۱۹۵۱ د تخنیکي کسانو د مهاجرت فیصدي له اوویشت فیصده (۲۷٪) څخه لس فیصده (۱۰٪) ته او په ۱۹۶۷ کې پنځه فیصده (۵٪) ته کښته سوه. د امریکا متحده ایالاتو ته د کاناډایانو د مغزونو فرار د کاناډا یوه داخلي سیاسي موضوع ده ځکه چې په کاناډا کې پر عوایدو ډېر ټکس اخیستل د مغزونو فرار پېښ کړی دئ.

په متحده ایالاتو کې کې د سافټ وېر، د هوایي جهازونو، د روغتیا او ساتیرې په سیکټورونو کې معاش لوړ دئ خو ټکس کم دئ. ځیني پوهان وایي چې په کاناډا کې پر تحقیق د بودیجې کموالي او د امریکا په متحده ایالاتو کې د مختلفو وظیفو امکانات هغه څه دي چې کاناډایي کادرونه ئې مهاجرت ته هڅولي دي. کاناډا په ۱۹۹۰ کلونو کې خپل ځیني ماهر کادرونه د امریکا پر متحده ایالاتو و بایلل خو په مقابل کې ئې بیرته له نورو هیوادونو څخه ډېر مسلکي کادرونه واخیستل. اوس کاناډا ددغو مسلکي کادرونو له استعدادونو او تجربو څخه ګټې تر لاسه کوي که څه هم ځیني وخت کاناډایان دباندني مسلکي کسانو سره تبعیض کوي او په هغو ځایونو کې ئې استخداموي چې معاشات پکښې کم وي.

د کاناډا غز بډونکي اقتصاد، پیاوړی داخلي مارکېټ، له غوښتنو او معیارونو سره برابر ژوند او په ډېرو سیکټورونو کې د مناسب معاش /مزدوري په کاناډا کې د مغزونو فرار ختم کړی دئ. د کاناډا

اقتصادي کامیابي اوس ځینو خاصو مسلکي امریکایانو ته د مهاجرت زمینه برابره کړې ده.

د غیري واقعي شواهدو له مخې، د ۲۰۰۱ د سپټمبر یوولسمي له پیښې څخه وروسته د امریکا په امنیتي اقداماتو کې خاص د پام وړ بدلون ونه لیدل سو، ځکه خو اوس امریکایان کاناډا ته مهاجرت کوي.

د امریکا متحده ایالات: د امریکا متحده ایالات په عمومي توګه د دماغونو له فرار سره مخ نه دي ځکه چې په زرو (۱۰۰۰) تعلیم یافته کسانو کې ئې د مهاجرت فیصدي صفر اعشاریه اووه (۰,۷) شمېرله سوې د مګر د امریکا متحده ایالاتو کلیوالي سیمي د کم نفوس په ستونزه اخته دي ځکه چې ډېر تعلیم یافته کلیوالي ځوانان ښاري یا نیمه ښاري سیمو ته کوچ کوي چې پر کلیوالي ټولنو ئې منفي تاثیر کړی دئ. د امریکا د مَسا چوسیټس د تکنالوژي د انسټیټیوټ یوغړی وایي چې دوی کلیوالي ځوانان په تعلیم سمبال کي خو هغوی وروسته په کلیو کې ژوند کولو ته زړه نه ښه کوي.

**لاتین امریکا:** د لاتین امریکا څخه ډېر مسلکي کسان مهاجرت کوي چې ډېری ئې ډاکټران، معماران او انجینران دي. دغو علمي کادرونو خپل مقصد ځای د امریکا متحده ایالات ټاکلی دئ. کله چې د امریکا متحده ایالاتو ته ورسیږي؛ هورې داسې کارونو پیل کي چې د مسلک خلاف ئې وي. دغه حالت د لاتین امریکا له پاره د مغزونو فرار دئ مګر د نړۍ له پاره د دماغونو ضایع بلل کیږي.

په ځینو لاتین امریکایي هیوادونو کي د شاګردانو نوم ثبتوونه په طبي مکتبونو کي ډېره ده، علت ئې دا دئ چې وروسته ډېری ډاکټران له لاتین امریکا څخه مهاجرت کوي.

د ۲۰۰۰ کال یوه څېړنه ښئي چې لاتین امریکایي هیوادونو ډېر مسلکي کادرونه له لاسه ورکړي دي. فیصدي ئې په لاندي جدول کي وګورئ:

جدول ۱: په لاتین امریکا کي دعلمي کادرونو مهاجرت

| هیواد | دعلمي/مسلکي کادرونو د مهاجرت فیصدي |
|---|---|
| ارجنټینا | ۲,۹٪ |
| برازیل | ۳,۳٪ |
| چیلي | ۵,۳٪ |
| کولمبیا | ۱۱,۰٪ |
| اکواډور | ۱۰,۹٪ |
| مکسیکو | ۱۴,۳٪[۱۴۰] |

**کیوبا:** په ۱۹۹۷ کي د کیوبا چارواکو وویل چې یو دېرش زره (۳۱۰۰۰) کیوبایي ډاکټران د نړۍ په یو شپېتو (۶۱) ممالکو کي مهاجر دي. د کیوبا شل زره (۲۰۰۰۰) ډاکټران په وینزیوېلا کي د ورځې د یو لک (۱۰۰۰۰۰) بېلره تیلو د تبادلې په مقابل کي په کار اخته دي. هغه کیوبایان چې د خپل دولت له خوا ورته په وینزیوېلا کي د کار کولو اجازه ورکوله سوې ده او هیواد ته پیسې استوي، د مغزونو په فرار کي نه شمېرل کیږي.

**کارابین:** د کارابین جزیرې ډېر ماهر کادرونه له لاسه ورکوي. د دغو جزیرو څخه تقریباً دېرش فیصده (۳۰٪) کاري ځواک له خپلو هیوادونو څخه تللی دئ او اتیا فیصده (۸۰٪) د سوري نېم (Suriname) هایتي (Haiti) ګرینادا (Grenada) او ګویانا (Guyana) د

جزیرو اوسېدونکي، چي له پوهنتونونو څخه فارغ دي، د امریکا متحده ایالاتو ته ئې مهاجرت کړی دئ.

د جامیکنس (Jamaicans) ډېری اوسېدونکي په خارج کي ژوند کوي مګر خپل هیواد ته پیسې استوي. هغه پیسې چي د جامیکنس مسلکي کادرونه خپل هیواد ته له دباندي څخه وراستوي، د یاد هیواد د ملي خالصو تولیداتو (GNP) اتلس فیصده (۱۸٪) جوړوي.

**غربي اسیا:**

عراق: کله چي د عراق په جګړه کي امنیت او اساسي خدماتو ته لاس رسی نه وو، نو څلورمیلیونو عراقیانو خپل هیواد پرېښودئ. په عراق کي له ۲۰۰۳ څخه تر ۲۰۰۶ کاله نهه اتیا (۸۹) د پوهنتون پروفیسران او لوړ رتبه لیکچرورکوونکي وژل سوي دي. د عراق د پوهني وزارت د راپور له مخي د ۲۰۰۶ کال په څلورو میاشتو کي درې سوه یوولس (۳۱۱) ښوونکي قتل سوي ول.

د صدام حسین د حکومت له نسکورېدو سره سم، فراري عراقیانو ته زمینه برابره سوه چي بیرته خپل هیواد ته ورستانه سي مګر اوس حالت بیا بلې خواته روان دئ. امنیتي ستونزي، اختطاف، ترور، ځوروني او د جرمي ډلو له خوا د پیسو غوښتنه د عراقیانو د مغزونو د فرار عوامل دي چي د عراق اقتصاد ئې له ستونزو سره مخ کړی دئ.

ایران: د آی ایم ایف یا نړی وال پولي صندوق د ۲۰۰۶ کال له سروې سره سم، ایران په نیوي (۹۰) هیوادونو کي هغه هیواد وو چي د بشري سرمایې په فرار کي ئې لومړی مقام ترلاسه کی. د ۱۹۹۰ م کلونو په شا و خوا کي یو لک پنځوس زره (۱۵۰،۰۰۰) ایرانیان د اقتصادي همکارۍ او انکشاف د مؤسسې (Organization for Economic Co-operation and Development *OECD*) مربوط هیوادونو ته مهاجر سول چي پنځه ویشت فیصده (۲۵٪) ئې ماسټري درلودې.

د آی ایم ایف د ۲۰۰۹ کال په راپوري کي ویل سوي دي چي هر کال د یو لک او پنځوس زره څخه تر یو لک و اتیا زره (۱۵۰،۰۰۰-۱۸۰،۰۰۰) ایرانیان له خپل هیواد څخه مهاجرت کوي چي ایران ته ئې له کاله پنځوس بیلیونه امریکایي ډالر تاوان وراړولی دئ. په ایران کي د مغزونو فرار د بې کاري او سختو ټولنیزو قوانینو له مخي رامنځ ته سوی دئ.

**نوټ:** زه (لیکوال) د ایران اړوند ارقام او حقایق یوځه ذهنیتي بولم ځکه چي د ایران په اړه منفي خبرونه ډېر خپرېږي. لوستوونکي او لیکوالان دي نور تحقیق پسي وکړي.

**منځنۍ ختیځ:**

اسرائیل: اسرائیل د تاسیس له ورځي څخه بیا تر ننه د مغزونو له فرار سره مخ دي ځکه چي ډېری اسرائیل د امریکا متحده ایالاتونو ته مهاجرت کوي. اوس درې لکه و دېرش زره (۳۳۰،۰۰۰) اسرائیل له خپل هیواد څخه د باندي ژوند کوي.

د یوې ټولپوښتني له مخي، سیاسي بې ثباتي او نا امني د اسرائیلو د مهاجرت عوامل نه دي بلکي د باندي د ژوند کولو ښه معیارونه، کاري زمینې، مسلکي پرمختګ او لوړي زده کړي د اسرائیلو د مهاجرت کولو عوامل بلل سوي دي. په اسرائیلو کي هغه تعلیم یافته کسان چي په ساینس او انجینري کي ئې زده کړي

بشپړه کړي وي، دباندي ځي او لږ تعداد تعلیم یافته ئې د هیواد دننه پاتیږي.

د مې د میاشتي ۱۹۴۸ چې د اسرائیلو د تاسیس نېټه ده بیا تر ۲۰۰۵ کاله څلور لکه (۴۰۰،۰۰۰) اسرائیلي ډاکټران او مسلکي کادرونه مهاجر سوي دي.

په ۲۰۰۹ کي د اسرائیلو د لوړو زده کړو شورا خبر ورکړ چې پنځه ویشت فیصده (۲۵٪) تعلیم یافته اسرائیل له هیواد څخه دباندي اوسیږي اوس په ډېرو اسرائیلو کي خپل وطن ته د بیرته ورستنېدلو میلان پیاوړی سوی دئ.

په ۲۰۰۷ کي اسرائلي حکومت د خپلو هیوادوالو د بیر ته ورستنېدو د تشویق پروګرام پیل کی چي مثبته نتیجه ئې ورکړې ده. د ۲۰۱۰ راهیسي اسرائیلي څېړونکي، بیزنیس منېجران، مسلکي او تخینکي کادرونه خپل هیواد ته ځي.

**عربي نړۍ:** د ملګرو ملتونو او د عرب لیګ په حواله، عربي هیوادونه تر ۲۰۱۰ کاله د کادرونو له فرار سره مخ ول. له عربي هیوادونو څخه یو میلیونو متخصیصنو او ماهرینو په غربي هیوادونو کي ژوند کاوه چي په تخنیکي او علمي ساحو کي د کار کولو زمینه ئې عوامل ول خو ځیني نور عرب د سیاسي بې ثباتي او جنګ له لاسه مهاجر سوي ول.

د ۲۰۱۲ راهیسي د عربي هیوادونو د مغزونو فرار مخ پر سمېدو دئ ځکه خو ځوان عرب زده کوونکي پر خپل کور پاتیږي او له نورو هیوادونو څخه هم ورستنیږي. دغه کار د عرب پسرلي په نتیجه کي سوی دئ. ډېری عربي هیوادونه پوه سول چي ساینس د پرمختګ لاره ده نو دوی پر دغه لار روان سول او خپل هیوادونه ئې د مغزونو له فرار څخه وژغورل. نړۍ وال دوامداره اقتصادي رکود یو بل عامل دئ چي عرب ئې پر خپل کور پاته کړي دي.

**پاسفیک اسیا:**

مالیزیا: تر مالیزیا دباندي ښې کاري زمینې، تعلیم، د مالیزیا په داخل کي فساد، اجتماعي نا مساوات (social inequality) د مالیزیا د مغزونو د فرار عوامل دي. په ۲۰۱۱ مېلادي کي بیر ناما ( *Berita Nasional Malaysia*: Bernama) –چي د مالیزیا لویه حکومتي خبري اجنسي ده– خبر ورکی چي یو میلیون ماهر مالیزیایان له هیواد څخه دباندی کار کوي. اوس په مالیزیا کي د مغزونو فرار چټک سوی دئ، مالیزیا ډېره په ځوریږي.

له ۲۰۰۸ څخه تر ۲۰۰۹ کاله، درې لکه پنځه زره (۳۰۵،۰۰۰) مالیزیایانو خپل وطن پرېښئ وو. د ۲۰۰۷ کال په مقایسه یو لک و څلوېښت زره (۱۴۰،۰۰۰) مالیزیایانو مهاجرت کړی وو چي ډېری ئې هندي او چینایي مالیزیایان ول. د مالیزیایي کار ګرانو او کارمندانو مهاجرت د مالیزیا اقتصادي وده په ۲۰۰۰ کال کي څلور اعشاریه پنځه فیصده (۴،۵٪) او د ۱۹۰۰ کلونو په شا او خوا کي اووه اعشاریه دوه فیصده (۷،۲٪) ته کښته کړې وه.

فلپین: فلپین له ۱۹۶۰ کلونو راهیسي بیا تر ننه د مغزونو له فرار سره مخ دئ. د مغزونو فرار د فلپین په اقتصادي سیکټورونو کي د نرسینګ پر سیکټور منفي اغېزه کړې ده. که څه هم اوس د فلپین په اقتصادي حالت کي څه نا څه تغیرات راغلي دي خو فلپین د مستعمرې له نېټې څخه بیا تر اوسه د مغزونو له فرار څخه خلاص سوی نه دئ. دوهم نړۍ وال جنګ د فلپین اقتصاد او زېربناو ته تاوانونه ور واړول. په نتیجه

کې ئې فلپينيان د روغتيايي ستونزو او د ثروت/عايد د غير مساويانه وېش سره مخ کړل.

که څه هم پر دولس زره (۱۲۰۰۰) فلپينيانو يو نرس رسيږي خو د هغه وخت د ماليې وزير او د ملي اقتصادي شورا رئيس روکساس د صحي ستونزو پر ځاي، له مالي ستونزو سره لاس او ګرېوان وو ځکه چې حکومت ئې د بوديجې د کسر سره مخ وو.

کله چې د امريکا متحده ايالاتو په ۱۹۶۵ مېلادي کال کې د مهاجرت قانون ته يو څه بدلون ورکې، نو امريکا ته د فلپيني نرسانو صادرول/مهاجرت هم پيل سو. امريکا متحده ايالات له هغو هيوادونو څخه وو چې د هيواد په دننه کې د نرسانو له کمښت سره مخ وو.

په نړۍ کې فلپين تر ټولو ډېر نرسان د امريکا متحده ايالاتو، انګلستان، او سعودي عربستان ته صادروي. پورته يادونه وسوه چې د امريکا متحده ايالاتو د نرسينګ سيکټور د کارمندانو له کمښت سره مخ وو، نو امريکا د مهاجرت په قانون کې تغيرات راوستل چې د فلپينيانو په ګټه تمام سول. ډېرو فلپينيانو ته په امريکا کې د کارکولو زمينه برابره سوه. فلپينيانو به خپل هيواد ته پيسې ور استولې چې د فلپين د دولتي او خصوصي نرسينګ سيکټور د انکشاف سبب سو.

د فلپين په اړه پوره ډاټا تر لاسه کول ستونزمن دي خو د ۱۹۷۰ کلونو څېړني ښئي چې پنځه اتيا ۸۵٪ فلپيني نرسان له هيواد څخه مهاجر سوي دي. له دې سره سم، فلپين په ۱۹۵۰ کې اوولس (۱۷) نرسينګ مکتبونه درلودل. د مکتبونو د غهتعداد په ۱۹۷۰ کې يو سلو څلوېښت (۱۴۰) ته پورته سو.

په فلپين کې د شلمې پېړۍ په اواخرو کې د يوه نرس مياشتنی معاش پنځه سوه الی زر (- ۵۵۰ ۱۰۰۰) پيساس وو چې په هغه وخت کې د اويا تر يو سلو څلوېښت (۱۴۰ - ۷۰) امريکايي ډالر معادل وو. د امريکا په متحده ايالاتو کې ديوه فلپيني نرس متوسط معاش له اته سوه څخه تر څوارلس سوه (- ۸۰۰ ۱۴۰۰) امريکايي ډالرپوري وو. فلپينيانو به دغه پيسې خپل هيواد ته استولې چې بايد د فلپين د اقتصادي انکشاف سبب ګرځېدلی وای خو داسې ونه سوه.

فلپينيانو په ۱۹۷۸ کې دو نيوي اعشاريه پنځه (۹۲،۵) ميليونه امريکايي ډالر له امريکا څخه خپل هيواد ته استولي ول. په ۲۰۰۵ کال دغه رقم لس اعشاريه اووه (۱۰،۷) بيليونه امريکايي ډالروته ورسېدئ. فلپين ډېري پيسې تر لاس کړې خو د بې کارۍ په کمولو کې ئې ورسره کومک ونه کې. په ۱۹۹۰ کې اته اعشاريه څلور فيصده (۸،۴٪) فلپينيان بې کاره ول. په ۲۰۰۳ کې دغه فيصدي دوولس اعشاريه اووه (۱۲،۷٪) ته پورته سوه. په ۲۰۱۱ کې فلپين پر روغتيايي چارو او سهولتونو د خپل ملي نا خالص توليداتو (GDP) درې اعشاريه شپږ (۳،۶) فيصده مصرف کړی وو چې نړۍ وال صحي سازمان ورته ۱۷۰ يم مقام ورکی.

له ۱۹۹۹ څخه بيا تر ۲۰۰۳ مېلادي کاله يا په پنځو کالو کې فلپين اووه ويشت زره (۲۷۰۰۰) محصلين په نرسينګ کې روزلي او فارغه کړي دي. يوازې په ۲۰۰۵ کې شُپږ ويشت زره (۲۶۰۰۰) نرسان له زده کړو څخه فارغه سوي دي خو بيا هم د فلپين صحي نظام په خاصه توګه په کليوالي سيمو کې د بوديجې د کسر، د پرسونل او د پرمختللي تکنالوژي له کمښت سره مخ دئ.

پوهان وايي چې د نرسينګ خصوصي او تجارتي کول د فلپين د علمي کادرونو د فرار سبب ګرځېدلي دئ. په فلپين کې د نرسانو معاش له هغه معاش سره چې په امريکا کې فلپيني نرسانو ته ورکول کيږي ډېر فرق لري. څېړنې ښئي چې د ۲۰۰۵ څخه تر ۲۰۱۰ پورې په فلپين کې يو فلپيني نرس ته يوسلو اويا (۱۷۰) امريکايي ډالر د مياشتې ورکول کېدل. د امريکا په متحده ايالاتو کې بيا له درې څخه تر څلور زره (۳-۴۰۰۰) امريکايي ډالر به د مياشتې فلپيني نرس ته ورکول کېدل. د امريکا دغه اقتصادي تشويق د فلپيني نرسانو له پاره ددې سبب سوی دئ چې فلپيني ډاکټران هم هيواد پرېږدي او امريکا ته مهاجر سي ځکه چې ډاکټرانو به د خپل هيواد په دننه کې له درې سوه تر اته سوه (۳۰۰-۸۰۰) امريکايي ډالر په مياشته کې پيدا کول، د ډاکټرانو معاش په امريکا کې د ميشتو فلپيني نرسانو ترمعاش کم وو.

امريکا ته د فلپيني نرسانو او ډاکټرانو مهاجرت د فلپين د صحي سيکټور په تاوان تمام سوی دئ. په ۱۹۹۰ کې به د پنځلسو تر شلو (۱۵-۲۰) ناروغانو پر سر يو نرس رسېدئ. د وخت په تېرېدو سره، ددې پر ځای چې د فلپين په صحي سيستم کې اصلاحات راغلي وای، خرابي رامنځ ته سوې ځکه چې په ۲۰۰۷ کې به څلوېښتو الی شپېتو (۴۰-۶۰) مريضانو ته يو نرس ولاړ وو.

د فلپيني نرسانو او ډاکټرانو مهاجرت نه دا چې د فلپين د صحي سيکټور د خرابي سبب سو بلکې دغه مهاجر فلپينيان هم له ډېرو ستونزو سره مخ سول. مثلاً، فلپينيانو په امريکا کې ونه سوای کولای چې خپل د مسلک مربوط نوي مهارتونه زده کړي. ډېر وخت به د شپې او د رخصتيو په ورځو کې پر کار ول، په کاري چاپيريال کې ئې تبعيض وو، فرديسي، د کورنۍ او ټولنې څخه ليرېوالي په رواني فشارونو پسې اخته کړل.

کله چې حکومت ونه سي کولای چې د مغزونو د فرار ګټې او تاوانونه په سمه توګه وسنجوي، هغه به په اقتصادي، اجتماعي، مالي او صحي ستونزو اخته کيږي. نور بيا...

## وخت د باران په شان دئ

تاسو به ليدلي وي چې کوم څاڅکي د اسمان څه راشوه سي نو هغه بيرته نه پورته کېږي، نو وخت چې تېر سي هغه بيا نه راګرځي.

باران يو دئ. خو چې پر هموار او ډېرينه مځکه وسي نو کومه فائده نه ورڅخه اخيستل کېږي، خو چې پر خوړه مځکه وسي ښائسته، ګلونه، باغونه او نباتات په رازرغونه سي، چې د خپل ځان د ښايست او د نورو خلکو د فائدې سبب وګرځي؛ که دغه د باران څاڅکي د مار په خوله کې ولوېږي زهري قاتل ورڅخه جوړېږي او د خلکو د تاوان سبب ګرځي. همدا سي وخت دئ که چا ګټه ورڅخه وا نه خيستل په بې ګټو، عبثو، بې مطلبه او بې مقصده کارونو کې ئې مصرف کړ، نو د خسارې او زيان سبب ئې ګرځي او کوم کس چې فائده ورڅخه اخيستل د علم او عمل په ګټه ئې ځان ښائسته کړ، د الله جل جلاله عبادت ئې وکړ، د الله د رسول تابعداري ئې وکړه. اخلاق ئې د هغه په ډول جوړ کړل. د مور او پلار خذمت ئې وکړ. د غريب لاس نيوی ئې وکړ او خپل ټولنيز اخلاق ئې سم کړل. نو په خپله ئې هم لوی مقام په برخه سو او د نورو خلکو له پاره هم سبب د رحمت و ګرځېدئ.

محمدابراهیم محتاج

# دوه چنده

## (لنډه کیسه)

سړي څو واره زړه راغونډ کړ، چې د کور دروازه وټکوي، خو چې هر څه ئې وکړل جرئت یې ونه سوای کولای. له دروازې د دېوال څنگ ته سو دصدرۍ په یو اوبل جېب کې ئې وکتل (سر ئې وښوراوه) بیرته دروازې ته مخامخ سو. زړه نازړه ودرېدئ لاس ئې له جېبه راوه ایستی. په احتیاط ئې لاس دروازې ته ور اوږد کړ. غوښتل ئې دا وار دروازه وټکوي د کور له دننه ئې دښځې ږغ واورېدئ:

هلکه مه ژاړه! پلار دي راروان دئ، نن به ئې معاش اخیستئ وي. د کور سودا او د نانوایي گرمه ډوډۍ به هم راوړي. هلک په ژړغوني ږغ وویل:

ته خو هره ورځ وایې، چې پلار به دي معاش واخلي، د وچې ډوډۍ په خوړلو مي زامي درد کوي.

سړي یودم دروازې ته شاه کړل په چابکو گامو نو تر کوڅې ووتی، څوشیبې وروسته د کلي تر دوکانه ورسېدی. له دوکانه ئې د اړتیاوړ سودا واخیستل، کله چې وخت دحساب سو دکاندار وویل: (۸۲۰) افغانۍ کېږي.

سړي یو وار بیا دصدرۍ جیبونه وپلټل، دوکاندار ته ئې وویل:

پیسې مي هېرې سوي دي، سودا به یوسم دا پیسې او زوړ حساب به دي پر یوه ځای درکړم.

دوکاندار سترگې راوکښلې په بې پر وایي ئې ورغبرگه کړه:

د درو میاشتو زوړ حساب دي تر اوسه پاته دئ، دپیسو دي درک نسته، هر وخت چې دي پیسې راوړې بیا په سوداپسې راسه، ورځه لار دي وهه!

سړی له دوکانه تش لاس روان سو، د سترگو مړې اوښکي یې په پټو پاکولې.

ناڅاپه ئې په زړه کې داور وگرځېدل، چې (قصداً په موټر ځان ووهي او په تاوان کې به څه پیسې ورڅخه واخلي.)

په دې فکرونو کي دسړک غاړي ته نږدې سو مخامخ لوی بار وړونکی موټر راروان وو. کرار – کرار یې ځان ور نږدې کړ د موټر په راتلو سره سړی بېرته شاته سو، د

ځان سره یې وویل : که په غټ موټر ځان ووهم ژوندی نه پاتېږم. دا وخت یو بل کوچنی موټر پرسړک راښکاره سو، په چټکو ګامونو یې د سړک منځ ته ځان ور واچاوه، موټر هم په تېزۍ راروان وو. سړي سترګې پټې کړې، د ځان سره یې کلمې ویلې داوخت یې دشا لمن یې کش سول.

سترګي یې لځي کړې ترشائې وکتل کوچنۍ شپږکلن زوی یې لمن نیولې وه، په معصومه لهجه یې وویل : اغاجانه دوکاندار وایې راسه !

سړی دخجالت او ملامتیٰ په حالت کې د دکاندار مخ ته چپ ولاړ وو، دکاندار په کراره وویل : ګوره معلم صاب ! کوچنې زوی دي راته وویل، چې (څو ورځې کېږي په وچه ډوډۍ مو ګزاره ده ) دخدای له وېرې او دغه کوچنې په خاطر دي مراعت کوم، سودا واخله خو پیسې ژر غواړم.

معلم صاحب په ټیټ ږغ وویل : منم یې چې ملامت یم، خوڅه وکم مجبوریم له یوې خوا دمعلمۍ معاش دئ، چې نه په مړ اونه په موړ یم له بلې خوا څلور میاشتې کېږي، چې معاش نه دئ حواله سوئ، بل هیڅ عاید نه لرم. کله بودجه نه وي، کله ئې پارلمان نه مني، کله بیا بانکې سستمونه کار نه کوي، څوک د چا له حاله څه خبر دئ، خو ستا احسان زه نه هېروم، چې پیسې په لاس راغلې اول ستا حساب در کوم.

دوکاندار دخبرو نوبت واخیستئ وې ویل : نو بیامعلمي څه کوې ؟

راسه زما د دوکان مخ ته تر کاري خرڅوه، څوني معاش چې دولت در کوي زه دهغه دوه چنده در کوم او دهرې میاشتې حساب دې دمخه در کوم.

احمد شاه ژوبل

## د حکمت شمع

د حکمت په لارکې شمع یم بلېږم
د غفران د جام په طمع یم ژړېږم

کاشکې ژوند وای د اصولو په رڼا کې
د بې دردو سره جمع یم ګړېږم

چنګ ونی هم آهنګ نه دي په محفل کې
د بې خونده ساز په سمع یم ګډېږم

د خزان سېلۍ راوالوته یارانو
وار دمخه قلع قمع یم رژېږم

عیش و نوش خو د نېکانو علامه ده
زه د عشقه څخه منع یم پوهېږم

خریدار مې په جهان کې چیري نسته
زه د خپل جانان په شفع یم نخېږم

د مسجوع کلام لوی راز د زړه پرهر دئ
سرتر پایه تول له سجع یم خوږېږم

د حساب ورځ راروانه ده رقیبه
ژوبل پوه په خپله وضع یم رپېږم

لیکوال: م. هارؤن خپل شعشعي

# جوسایا هارلن او افغانستان

د لیکنۍ په دې په زړه پوري لړۍ کښې د جوسایا هارلن یا هغه امریکایي د ژوَند د لوړو او ژوَرو، خطرناکو ماجراغوښتنو او ارزښتناکو تاریخي یادښتو په اړه خبري کوؤ، چي و هِند او چین تې (ته ئې) د یوه تجارتي سفر پر مهال، په کلکته کښې د خپلي راتلوُنکي ناوي د بې وفایي د دردؤنکي خبر په تر لاسه کوَلؤ سره و خپل پلرني هیواد ته له بیا ور تګه یومخیزه نیّه وکړه؛ او پر ځای ئې په هِند کښې د پردېسي او ماجراغوښتني لار واخیستله. په هِند کښې (کښې ئې) له انګرېزي پوَځ سره تر څو کاله زړه نا زړه خذمت وَرؤسته د پنجاب و خوا ته مخه کړه، چي هغه مهال د مهاراجه رنجیت سینګ/سنګه تر پراخېدؤنکي واکمنۍ لاندي ؤ؛ خؤ په لودیانه کښې د لاهور دربار ته د لار مؤندني په مخسد د خپل انتظار پر وخت، نابېره د افغانستان له شړل سوَي باچا، شاه شجاع، سره پېژندګلوي پېدا سوه، چي هغه مهال ئې د انګرېزانؤ په دغه سرحدي ښارګوتي کښې د اسارت شپې او روَځي تېروَلې. که څه هم له جلاوطنه باچا سره ئې یاري او دوستي وَرؤسته په کرکه او دؤښمنۍ واوښتله، خؤ د افغانستان او افغانانؤ مینه ئې د ژوَند تر وَرؤستییؤ کلو پؤري هیڅکله له زړه نه وتله.

هارلن، څو کاله په افغانستان کښې استوګه وکړه؛ د کابل د امیر، دوست محمد خان، په دربار کښې د قدر او درناوي مقام تر لاسه کئ؛ او د افغانستان د معاصر تاریخ د ځینؤ مهمؤ تاریخي پېښؤ عیني شاهد ؤ. متأسفانه له تاریخي یادښتؤ څخه ئې د افغانستان د معاصر تاریخ په زیاترؤ اثارؤ کښې لازمه استفاده نه ده سوې.

د جوسایا هارلن د ژوندانه د عاطفي اړخو، سیاسي ماجراغوښتنؤ او تاریخي یادښتو پر بنسټ کښل سوې دغه لړۍ تر بېلؤ بېلؤ عنوانو لاندي، په پرلپسې بڼه، وړاندي کیږي. هیله لرم لوستنه ئې زموږ و محققؤ او مدققؤ لوَستؤنکؤ ته له ګټې او دِلچسپۍ خالي نه يي.

لۊمړی برخه:

جوسایا هارلن څوک ۊ؟ څنګه له امریکا څخه و کابل او کندۊز ته ولاړئ؟ او ولې ئې د ژوَند تر پایه د افغانستان میني پر زړه څپې وهلې؟

جوسایا هارلن، د هغه هوډمن او نه ستړي کېدۊنکي امریکایي ماجراغوښتۊنکي نوم دئ، چې د (۱۷۹۹ع) کال د جوّن پر دولسمه ئې د امریکا د متحدۊ ایالتو د فیلادلفیا ایالت د چیسټر ګوٗنټۍ په «نیولین» ښارګوټي کښې د جوشیوه او سېره هارلن په پرهېزګاره ګوٗیکر کورنۍ کښې و نړۍ ته سترګې پرانیستې. راغلي چې په کوٗچنیوالي کښې ډېر ناارامه، شوخ او هوښیار ۊ. په دیرلس کلنۍ کښې د مور تر مړیني ۊرۊسته و پلټني او مطالعې ته مخه کړه؛ او د ځان محوه کوٗلۊ تر پۊلې ئې ځان پکښې ډوب کئ. له طبي اثارۊ، د یۊناني مؤرخ، عالم او فیلسوٗف (پلوٗټارک) له ژوَندلیکوٗنوٗ، د پېغمبرانوٗ له کیسو او داسي نورۊ ادبي، تاریخي او علمي مَوٗضوعاتوٗ سره ئې څوَب او اُلفت پیدا سوٗ. په داسي حال کښې، چې په فرانسه یي/فرانسوي ژبه ئې پخوالا خبري کوَلای سوای، د یوناني او لاتیني ژبوٗ و زده کړي تې هم ملا و تړله. و افغانستان تې د ور تګ پر مهال د اوٗردوٗ او پاړسي ژبوٗ د زده کړي ویاړ هم تر لاسه کئ. د ژوَند تر پایه ئې له بوټاني یا نباتپوهني سره خپله ژوَره مینه و پالــله. د خـورا ډېـرۊ ګلانـۊ، بوٗټـۊ او مېـوو نوٗموٗنـه، ډوٗلوٗنـه او خصوٗصـیتوٗنه ئـې ثبـت او معرفـي کـړل. د تـاریخي شخصـیتو د مطالعې په لړ کښـې د مقدۊني سکندر یا سکندراعظم له کارنامو سره دوٗنه مینه پیدا سوَه، چې د خپل اتل په حیث ئې نمانځنه کوٗله. پلار ئې په زلمیتوب کښې د سپوٗپر کارګو (د کښتـۍ د مـالو د مالک استازی) وظیفه ور و موٗندله؛ او واردواره ئې په (۱۸۲۰ع) کښـې د هِند او چین پر لوَر د بحري سفر موزې په پښو کړې. څه موٗده ۊرۊسته په بري سره بیرته و خپل ټاټوبي او کهول ته ستوٗن سوٗ. پر هغه لار و بل سفر ته د تیاري پر مهال د الیزبیت سوٗیم د میني په لوٗمه کښې و لوېدئ. په کوزده کښې وعده سره وکړه، چې د هِند او چین تر نوي سفر ۊرۊسته به د واده مراسم پر ځای کیي؛ او د ګډ ژوَندانه بنسټ به ایږدي؛ خوٗ د خپلوٗ خیالو او اوٗمېدو پر خلاف ئې نابېره په کلکته کښې له خپل ۊرور، ریچرډ هارلن، څخه خبر تر لاسه کئ، چې الیزبیت سوٗیم د کوزدې ژمنه ماته کړې؛ او له کم بل چا سره ئې واده کړئ دئ. د دې خبر په آروېدو سره ئې زړه مات او عواطف سخت مجروح سول. د الیزبیت یا الیزې په بې وفایۍ او بېلتانه کښې سوزناک شعرۊنه و ویل. له ځانه سره ئې پرېکړه وکړه، چې په خپل کور او کلي کښې خوٗ څه چې په امریکا کښې ئې به لا بیا هیڅکله پښه نه ایږدي؛ له امریکا څخه به په زړو میله لیري په ختیځ کښې خپل قسمت ازمایي؛ او د سر په بیه به د نوٗو پېښوٗ او نوٗو خطرو و غېږي ته ور دانګي.

په (۱۸۲۴ع) کښې، سره له دې چې رسمي زده کړې هم نه وې کړي، د ختیځ هِند د کمپنۍ و اوٗردوٗ ته د جراح په حیث غوٗښتنلیک و سپارئ. دا مهال «کمپنۍ» په برما کښې و جنګ ته تیاری کاوَه؛ او د دې لښکر کښې د پاره ئې و جراحانوٗ ته اړتیا لرله. هارلن، د خپل ۊرور، ریچرډ، د طبي کتابو د ویلوٗ او په کښتۍ کښې د ناروغانوٗ په معالجه کښې د خپلوٗ شخصي تجربو په کومک د «کمپنۍ» و ازموٗیني ته حاضر سوٗ؛ او تر کامیابۍ ۊرۊسته د کلکتې په عموٗمي روغتوٗن کښې د جراح په حیث په کار و ګوٗمارل سوٗ. څه موٗده ۊرۊسته د برما و جبهې ته و لېږل سوٗ. په (۱۸۲۵ع) کښې د «کمپنۍ» له اوٗردوٗ سره د خذمت/خدمت پر مهال، په برما کښې تېې یا ناروغ سوٗ. ور پسې ئې څه وخت د بنګال له توپچي قوې سره خذمت وکئ؛ او د هغه په ترخ

کښې د توپچي داسي پوهه تر لاسه کړه، چي په راتلوُنکوُ رزمي فعالیتو کښې په درد و خوړله.

د دیلي/ډیلي/ډهلي د شمال په «کرنل» سیمه کښې نور د «کمپنۍ» په اوُردو کښي د خذمت حوصله کمه سوه. په دغوُ روَځوُ او شپو کښې د برتانیي موُرخ او سیاستوال، مَوُنتستیوَرټ الفنیستون (۱۷۷۹ – ۱۸۵۹ع)، هغه ارزښتناک اثر و لوَست، چي «د کابل سلطنت او په پارس، تاتارستان او هِند کښي د هغه د مربوُطاتوُ بیان» نوُمیږي. د کتاب له مطالعې سره ئې جوُخت په زړه کښې د افغانستان د لیدو شور او شَوُق پیدا سوُ. د افغانستان فیوُډلي ټولنه (چي سیاسي واکي ئې د قَوُمي او قبیله یي مخوَروُ په لاس کښي وې؛ او زیاتره د سیاسي واکمنۍ په هیله په خپله منځو کښي سره جنګېدل) د هارلن و پلټوُنکي ذهن او ماجراغوُښتوُنکي طبیعت ته تر ټولوُ په زړه پوُري ځای وُ.
د «کمپنۍ» په اوُردوُ کښې له کاره خدای پاماني و کړه؛ او په هِند کښې د یوه بهرني مُلکي په حیث د هغې زمانې له ګورنر جنرال، لارډ امهرسټ (۱۷۷۳ – ۱۸۵۷ع)، څخه د استوګي اجازه واخیستله.

هارلن، له «کمپنۍ» سره د خذمت له همغه شرو څخه خپله کرکه نه پټوَله؛ ځکه د سر په سترګوُ ئې لیدل چي د «کمپنۍ» واکمنانوُ د هِندیانوُ و آرامۍ او سوکالۍ ته هیڅ پام نه کاوَه؛ په داسي حال کښي چي په اقتصادي برخه کښې د خپلوُ ونډه والوُ د ګټوُ د لا زیاتوَلوُ دپاره له هري وسیلې او له هره امکانه کار اخیستې؛ او د خپل سیاسي نفوُذ د پراخوَلوُ او مز بوُتوَلوُ په لړ کښې ګام په ګام د هِند د بېلوُ بېلوُ سیموُ راجاګان او نوابان له خپل سیاسي– جنګي واک او ځواکه بې برخي کوَل.

هارلن، په هِند کښې د خپلې استوګي پر مهال آروېدلي وه، چي د پنجاب مهاراجه، رنجیت سینګ/ سنګهـ (۱۷۸۰ – ۱۸۳۹ع)، د خپل لښکر د روزنې او حکوُمتي اداري د عصري کوَلوُ په مخسد د اوُروُپایي هیوادو خیني پخواني پوَځیان په کار و ګوُمارلي؛ او نورو ته هم په خلاصه غېږه ښه راغلاست وایي. د دې اوُمید او اسرې په لحاظ ده هم پر بکړه و کړه، چي د نوُروُ اوُروُپایانوُ پر څنګ د مهاراجه په دربار کښي خپل بخت و ازمایي. د ختیځ هِند د کمپنۍ د سرحدي ښار ګوتې، لودیانې/لودهیانې، لار ئې په خوُله ور کړه؛ او له هغه ځایه ئې په لاهور کښې د رنجیت سینګ و دربار ته د ور تګ کوښښ پیل کئ. د پنجاب مهاراجه مګر په خپل ګاوَنډ کښي د برتانیایي حکوُمت له زیاتېدوُنکي نفوُذ څخه د بېري په وجه و هارلن ته له اجازې ور کوَلوُ نټه و کړه. ده هم د مهاراجه و اجازې ته د اِنتظار پر مهال د افغانستان له شړل سوي باچا، شاه شجاع (۱۷۸۴ – ۱۸۴۲ع)، سره د هغه په کور کښي لیده کاته و کړل، چي دا وخت ئې په لودیانه کښي د اسارت شپې او روَځې تېروَلې. له شاه شجاع سره ئې تر خبروُ او تفاهم وُروُسته د یوه پټ تړوُن له مخې د هغه و خذمت ته ملا و تړله. د یوه ستر ګوَر او پلټوُنکي امریکایي ماجراغوُښتوُنکي په حیث و هارلن ته تر رنجیت سینګ د شاه شجاع خذمت په څو لِحاظه واره دار و برېښېدئ؛ ځکه له یوې خوا ئې آروېدلي وه، چي شاه شجاع د افسانه یي شتمنیوُ خاوَند دئ. مانا دا چي د هغه په خذمت سره بې له یوې خوا پر پېمانه پیسې او انعاموُنه (هغه څه چي د پردېسۍ او سرګردانۍ په دې پېر کښي سخته اړتیا ور ته لرله) په لاس ور سي؛ او له بلې خوائې د شجاع شاهانه کړه وړه، طُمطُراق بیانوُنه (ښایي شعر او شاعري)، د ګلانوُ او وَنوُ د روزنې لوَړ ذَوُق او داسي ________

دغه مهم اثر «د کابل سطنت بیان او د هغه توابع په تاتاری، پارس او هندوستان کې» تر عنوان

لاندي د پوهنوال ډاکټر محمد حسن کاکړ او څړنیار نصرالله سوبمن منگل له خوا په دوو ټوکو کښي په پښتو ژباړل سوی، چي واردواره په (۱۳۵۹، ۱۳۶۱هـ ش) کښي د افغانستان د علومو اکاډیمۍ د پښتو څېړنو د بین المللي مرکز، خو تر هغه وروسته دوه واره بیا د دانش د خپرندویه ټولني په زیار خپور سوی دی.

نور لوړ خوځیونه پر طبیعت ښه لگېدل. تر ټولو ارزښتناکه خبره خو لا دا وه، چي د شجاع په خدمت کښي و هغي مرموزي او اساطیري خاوري ته د رسېدو لار مونده‌له، چي له ماجراغوښتونکي ختني او پلټونکي فکري جوړښت سره ئې ښه سر خواړه.

خیر، هارلن څو روځي وروسته د یوې ارجل برجلي وسله والي ډلي په مشرۍ د «بهاوکپور»، «دېره غازي خان»، «دېره اسماعیل خان»، «تخت سلیمان»، «کوهاټ» او «پېښور» له لاري د کابل پر لور رهي سو. له شاه شجاع سره ئې د خپل مخفي تړون له مخي وظیفه لرله، چي د امیر دوست محمد خان (۱۲۰۹هـ ق/ ۱۷۹۴ع - ۱۲۵۰هـ ق/ ۱۸۳۴ع) په درباریانو کښي د هغه پر ضد د شورش او کودتا لمسوني و کي؛ او په دې ډول یو وار بیا په کابل کښي د واک پر گدۍ د شاه شجاع و کښېنولو ته لار هواره کي؛ خو دوست محمد خان تر هغه ډېر پیاوړی او غښتلی و، چي د هارلن په ساده او سرسري نغم ایستلو ئې د سیاسي او نظامي واک مانۍ و نړیږي؛ ځکه نه د امیر درباریانو د هارلن - شجاع د کودتایي نخشي پر اساس د هغه پر خلاف و څه خطرناک سیاسي - نظامي اقدام ته لاس واچاوه؛ او نه هم شجاع له خپلي ژمني سره سم، په درباریانو کښي د هارلن تر سیاسي تحرکاتو وروسته په څه وسله وال یرغل لاس پوري کی. عجبه خو لا دا چي امیر دوست محمد خان و هارلن ته د زیات قدر او درناوي په کولو سره د هغه په زړه کښي خاص ځای و مونډ. هارلن، دوست محمد یو مؤدب، ښاغلی، ځیرک، زړور جنگیالی، د امارت پر مقام ناست خاکسار او متواضع شازاده او په وروستي تحلیل کښي یو لوړ او ارزښتناک دوښمن و باله. د امیر له میر ېزي وړور، نواب جبار خان (۱۱۹۷هـ ق/ ۱۷۸۲ع - ۱۲۷۰هـ ق/ ۱۸۵۳ع)، سره ئې تر مېلمستیاوو، سیاسي بحثو، ناتماموکیمیایي تجربو او ارکیولوژیکو پلټنو وروسته د جلال ابات/آباد - پېښور له لاري د لودیانې پر ځای ځان سیده و لاهور ته ورساوه، چي هوري د نورو اوروپایي منصبدارانو په ډله کښي د رنجیت سینگ و خدمت ته ملا و تړي. هارلن کښلي، ده وروسته د شاه شجاع پر بې کفایتۍ او عیاشیو سر ببره د هغه د ظلمو او وحشتو حقیقي څېره هم و پېژندله. یاني په دې کیسو خبر سو، چي شاه شجاع په مازي خپگان او چتې اوښتو سره د خپلو درباریانو غوږونه، پزي، ژبي او حتا خوټي او جنسي - تناسلي آلې پرې کولې.

هارلن، که څه هم په ناکامۍ سره له کابله و وتی، خو د کابل ښکلي او زړه وړونکي طبیعت ئې پر زړه او اروا ژوره اغېزه ښندلې وه. هغه وروسته کابل د داسي غمي په حیث یاد کی، چي شنه زمرد ئې پر شاوخوا اوډل سوي وه. په شاعرانه انداز ئې د کابل د شاوخوا سیمو د خوشبویه گلانو او شگوفو، خوندورو مېوو، رنگارنگو ښتي ونو، بېلو بېلو بوټو، جاري ولو، هسکو او په واورو پټو غرو، پراخو ډاگو او تر ټولو مهم مېلمپالو او صمیمي خلگو یادوني و کړې. هېره دي نه يي چي و افغانستان تې تر خپل دوهم وار ور تگ وروسته زموږ د هیواد د جغرافیایي جوړښت، د ځینو سیمو د دود و دستور او طبیعي پېښو په اړه هم په زړه پوري یادښتونه کښلي دي. ښایي هارلن به لومړنی غربي سیاح او ماجراغوښتونکی و، چي د امیر دوست محمد خان د

واکمنی پر مهال ئې د کابل د وحشتناکي کولرا په باره کښې په مشرح او مفصل ډول د خپلو سترګو لیدلئ حال کښلئ دئ (نومیالي افغانپېژاند، چارلس مېسن، که څه هم د کولرا د حملې پر مهال د کابل په شاوخوا سیمو کښې شپې او ورځې تېرولې، خو سره له هغه ئې هم د کابلیانو د دې لوی ناوړین په اړه تر یوې لنډې یادونې په آخوا څه نه دي راوړي؛ حال دا چې په خپل پنډ کتاب کښې د افغانستان د غرو، دښتو، درو، شېلو، قبرو، ستوپو، مړو، ژوَندو او داسې نورو ځایو او پېښو په باره کښې اوږدې خبري او تبصرې کړي دي).

خیر، رنجیت سینګ و هارلن ته په شرو کښې د همالیا د غرو په لمنو کښې د «نوُرپوُر» او «جسروُټه» سیمو واکمني و سپارله. څه موده وروسته ئې د ګوُجرات د ولایت په ور سپارلو و نازاوه، چې ملکي او عسکري اختیارات ئې لرل. رنجیت سینګ، په داسې حال کښې چې د کابل د امیر او د هغه د پېښوَر مېشتو وروڼو په اختلافو او لانجو ښه خبر وُ، د دوست محمد له خوائې د پېښور د بیرته نیولو پر مهال د بارکزو وروڼو تر منځ د بدګومانۍ او دوښمنۍ اور ته د لمن وهلو وظیفه و هارلن او خپل سلاکار، فقیر عزیزالدین (۱۷۸۰ – ۱۸۴۵ع)، ته و سپارله. هارلن، د رِشوَتو او غوړو وعدو په ور کولو سره د جنګ په میدان کښې د امیر د میر ېزي وُرور، سلطان محمد خان (۱۲۱۰هـ ق / ۱۷۹۵ع – ۱۲۷۸هـ ق / ۱۸۶۱ع)،

په غوَړو کښې ور پوُ کړل، چې ګوُندي دوست محمد خان په خپلې ټولې هوښیارۍ او چالاکۍ سره کوښښ کیي، پېښوَر و خپل ځان ته و نیسي. د دې خبري مانا دا وه، چې د پېښوَر د نیوَلو په مخسد د سلطان محمد او د هغه د پلویانو د وینو تویېدو ګټه و دې ته نه، بلکې یوازې و دوست محمد ته رسېږي؛ حال دا چې د دوست محمد یوازنی هدف د رنجیت له منګوُلو څخه د پېښوَر ژغور نه وه. خیر، هارلن او فقیر عزیزالدین د سلطان محمد او دوست محمد تر منځ د نفاق او شقاق اور ته لمن و وهله، چې په نتیجه کښې له سیکانو څخه د پېښور اخیستلو په نیامت د دوست محمد خان لښکر په تش لاس له جنګ څخه و پر شا تګ ته اړ ایستئ.

د (۱۸۳۵ع) کال د اګسټ پر نونسمه پر رنجیت سینګ مغزي حمله و سوه، چې د هغې په وجه ئې ژبه توُړۍ او د بدن ځینې برخې شوُټې سوې. د خپلې ناروغۍ د معالجې دپاره ئې هارلن له ګوُجرات څخه ور و غوښتئ. هارلن ئې د عِلاج په مخسد د برقي جټکې یا شوک سپارښتنه و کړه؛ خو د دې طبي پروسیجر د تطبیق په خاطر ئې و ځان ته د یو لک روُپو حق الزحمې او د غه راز د شوک ور کوُنکي آلې د برابرولو په نامه د پینځو زرو سټرلینګ پوَنډو غوښتنه و کړه. و رنجیت ته د هارلن له سپارښتني سره سم برقي جټکه ور کړل سوه. تصوُر کېدئ، چې د رنجیت ډنګر او کمزوری وجوُد به د دغسې جنجالي او خطر ناکو عملیاتو زغم و نه لري؛ حال دا چې عملیاتو د تصوُر پر خلاف و رنجیت ته هیڅ زیان و نه رساوه؛ خو د پیسو مسألې د رنجیت او هارلن اړیکي سختي زیانمنې کړې. رنجیت، سمدستي تور په پوُري کئ، چې ګوُندي هارلن له کیمیاګرۍ څخه په استفاده جعلي پیسې جوړیي. دا هغه جُرم وُ، چې د رنجیت په باچهۍ کښې د مرګ جزا لرله. هارلن، که څه هم د جعلي پیسو د جوړوَلو په اړه له نواب جبار خان څخه څناڅه / څه ناڅه مالوُمات تر لاسه کړي وه، خو هیڅکله ئې د هغو و عملي کوَلو ته زړه نه وُ ښه کړئ. د رنجیت د ناروا او جعلي تور په آرو ېدو سره پر ځان و بېر ېدئ؛ او په (۱۸۳۶ع) کښې تش لاس د برتانیي حکومت و سرحدي ښار ګوټي (لودیانې) ته په تښتېدلو

مجبور سو. هوري ئې له رنجيت څخه د دې نه بخښونکي خيانت د کسات اخيستلو لوړه وکړه. بې شکه، له رنجيت سينګ غوندي غښتلي او ځواکمن مهاراجه سره ئې په تش لاس او يوازې سر ټانټې نه سواى چيچلاى. و دې ارمان ته د رسېدو د پاره ئې و يوه پياوړي متحد يا مؤتلف ته اړتيا لرله. دا وخت د کابل تر واکمن، امير دوست محمد خان، په آخوا د بل دغسې هوډمن او زړه چاؤدى متحد يا مؤتلف هيڅ ځرک نه ؤ. په حقيقت کښې دا هغه تاريخي شېبې وې، چې هارلن د دوست محمد او برعکس دوست محمد د هارلن و لاسنيوي ته سخت ضرورت لاره. هارلن، يوه پلا بيا پر هغه تللې لار د کابل پر لور رهي سو. دوست محمد خان ئې په مينه او ځوَب د ور تک ښه راغلاست و وايه، که څه هم په زړه کښې له ياده نه وه وتلې، چې هارلن ګرسره څو مياشتې دمخه د رنجيت په لاربښوونه د ده د مير ېزې وُرور، سلطان محمد خان، په اړوَلو سره د ده پر ضد توطيه کړې وه؛ او په تش لاس ئې د جنګ له ميدانه و پر شا کېدو ته مجبور کړئ ؤ. دواړو متحدينو اوس په پوره زړورتيا او سربښندنې و خپل ګډ دوښمن (رنجيت) ته د عبرتناک درس ور کولو په هيله و يوې مناسبې مَوْکې/ موقع ته ستر ګې نيولې وې. هغه تاريخي مَوْکې بالاخره په لاس ورغله. هارلن ادِعا کړې ده، چې د جمرود په نه هېرېدونکې حماسه کښې د زړوَر او بې باکه سرلښکر، اکبر خان (۱۸۱۶ ـ ۱۸۴۵ع)، په مشرى د جنګياليو افغانانو پر څنګ په مړانه و جنګېدئ. په جنګ کښې د سيکانو وتلى او منلى سرلښکر، د رنجيت سينګ د کوچنيوالي ټينګ دوست او د هغه مهال د پېښوَر والي، هري سينګ نلوه، و وژل سو. که څه هم د جمرود په اتلواله حماسه کښې د افغانانو د توري له شرنګه د رنجيت سينګ غرور دړې وړې سو، خو په خواشينى

سره پېښوَر بيا هم پخوا غوندې د هغه د قواوؤ په قبضه کښې پاته سو.

هارلن، له رنجيت څخه د پېښوَر په بيرته اخيستلو کښې د دوست محمد د ډيپلوماتيکو کوښښو بشپړ ملاتړ کاوَه. ويل کيږي، چې د پېښوَر د استرداد په مخسد د لاړو او کلنډ په نامه د امير دوست محمد خان له طمطراقه ډک ليک هم د هارلن په قلم کښل سوئ ؤ.

و هارلن ته د هغه د وفادارى او مړانې په مکافات کښې د دوست محمد خان د اوُردو د روزنې مسؤليت و سپارل سو. څه مؤده وُروسته د ماليو ټولولو او ځينو مريي پلورونکو جنګي ډلو د سرکښو مشرانو لکه مُراد بېګ، محمد علي بېګ او داسې نورو د ايداد په مخسد د يوه لښکر په مشرى د هيواد و شمال ته و لېږل سو. د افغانانو د دې لښکر په مشرى سره و هارلن ته ځان مقدوني سکندر يا هغه ستر يوناني فاتح غوندې ايسېدئ، چې تر هارلن څه د پاسه دوه زره کاله دمخه د خپل لښکر په مشرى د هندوکُش تر غرو اوُښتئ ؤ. هارلن، په دې لښکرکښى کښې د هزارګانو له ځينو خانانو او مشرانو سره هم و پېژندل، چې وُروسته د هغې په ټينګار د هغو و غرنيو سيمو ته د خاص مېلمه په حيث و بلل سو. هارلن، د دې لېږ روَځنى کتنې په ترڅ کښې د هزارګانو د ژوند او ژواک په اړه په زړه پوري يادښتونه و کښل. د هارلن د ادِعا له مخې د دې سفر په پاى کښې د ده او هزاره مشر، محمد رفيع بېګ، تر منځ يو تړوَن لاسليک سو. د ادِعا سوي تړوَن له مخې و هارلن او د هغه وارثانو ته «د غور د شازاده» همېشنى لقب ور کړل سو؛ په داسې حال کښې چې د شازاده د وزارت مقام به په رفيع بېګ او د هغه په کورنى پوري اړه لري. هارلن، د شازاده د مقام په تر لاسه کولو سره مسؤليت لاره، چې د غور د دفاع او کورواکى د پراخولو په خاطر د

رفیع بېګ د سرو عسکري روزنه او پالنه وکې. هغه د ژوند تر پایه د دې «وياړلي» لقب د ورسپارني سند له ځانه سره ساتلئ ؤ؛ او د زړه ارمان ئې ؤ، چې یو وخت د ساده فخر او اعزاز پر ځای د عمل جامه هم ور واغوندي.

هارلن، د دوست محمد خان د حکؤمت په استازیتوب د کندوز له یاغي واکمن، مُراد بېګ، سره د یوه سوله پیز تړون د لاسلیک پر څنګ د شمال له بېلؤ بېلؤ سیمؤ څخه د کابل و حکؤمت ته ډېري مالیې ور تولي کړې، چې د دوست محمد له کمزوري خزانې سره لوی کومک ؤ؛ خؤ په خواشینی سره دوست محمد دغه وخت د شمال د سیاسي – امنیتي کراری او مالیو تولولؤ پر ځای د خپلي باچهی و بقا ته سخت اندېښمن ؤ؛ ځکه حکؤمت ئې و کابل ته د هارلن په ور ستنېدو سره د برتانیي اؤردؤ د مستقیم یرغل له خطر سره مخامخ ؤ.

له اټکل سره سم ډېر وخت تېر نه سؤ، چې د دوست محمد نظام د برتانیي لښکرؤ او متحدینؤ د ظالمانه تېري په نتیجه کښي نسکور؛ او مزدؤر شاه شجاع تر ډېرش کلني جلاوطنی ؤروسته د کابل په بالاحِصار کښي د تش په نامه باچهی پر تخت کښېنوَل سؤ. دوست محمد له خپلي کورنی سره د هیواد په شمال کښي د جهاد جنډه پورته کړه. هارلن په کابل کښي تر لنډي استوګي ؤروسته له ناچاریه د هِند پر لور رهي سؤ. واردواره و لودیانې او له هغه ځایه د کندهار له لاري و ایران، مصر، نیپلز، پاریس او لندن ته ولاړئ. په لندن کښي له خپلؤ شخصي اړیکو څخه په استفاده د روسیې و تزاري دربار ته د لار مؤندني کوښښ وکئ. ښایي تزاري دربار بې پر شا ټېاوه، چې تر هِندؤکش د خپل لښکر په ور اړولؤ سره په افغانستان او شاوخوا سیمه کښي د برتانیي سیالانؤ د نفؤذ محدؤدولؤ له لاري، خپلي ستراتیژیکي ګټي لا پراخي او مزبؤتي کي؛ خؤ له تزاري دربار سره تر خبرؤاترؤ دمخه ئې د ایوان [یان] وِیتکیوِیچ/وِیکتوروِیچ (۱۸۰۸ – ۳۹ع) د هغي عبرتناکي مړیني په ور یادولؤ له دې خطرناکه کوښښه لاس واخیست، چې روسي واکمنانؤ د «لویي بازی» په شرو کښي د انګرېزانؤ په وړاندي د خپل نرمښت او پر شا تګ په ډوَل په بې رحمی سره له پامه و غؤرځاوه. ناچاره له روسیې څخه د لندن پر لار و خپل اصلي ټاټوبي ته رهي سؤ.

هارلن، له هند څخه تر وتلؤ ؤروسته د یوې پراخي لیکني په ترځ کښي، پر افغانستان د برتانیي پَوځ د وحشیانه یرغل او د مظلؤمؤ افغانانؤ په وړاندي د یرغلګرؤ لښکرؤ پر ظالمانه او متکبرانه چال چلن سختي حملې وکړې؛ ځکه نو انګرېزي لیکوالؤ، مؤرخانؤ او سیاستوالؤ د «فتنه ګر»، «ناباوَره» او احتمالاً «لېوَني» په نؤمو یاد کئ؛ او تر وسه وسه ئې کوښښؤنه وکړل، چې کتاب ئې ناسم او بې اعتباره و ښیي (سره له دې چې د پر دې تر شا ئې په سړه سینه او پؤره غَوَر ټکی په ټکی مطالعه کاوه).

هارلن چې پخوا له یوې خوا د جمهؤریت غؤښتني، خپلواکی او بشري حقؤنؤ د برابری، په تېره بیا د مرییتوب له ځنځیرو څخه د بشر د ازادی او له بلي خوا د شاهانه شان و شَؤکت هوسؤنه په سر کښي پالل، و خپل پلرني ټاټوبي ته په رسېدو، له مطبؤعاتؤ سره په خپلؤ مرکو کښي ادِعا وکړه، کله چې د امریکایي ښاري له ښاغلي او ویاړلي نامه سره په ټکر کښي و درېږي، بیا نو د باچهانؤ او شازادګانؤ واکمنی ناچیزه او بې ارزښته مفاهیم دي. خپلؤ خلګؤ ئې د برتانیي سیاستوالؤ او مطبوعاتؤ د خصمانه دریځ پر خلاف، د یوه قهرمان په شان هرکلي وکئ.

هـارلن، اصـلاً «پـه هِنـد کښـې د برتـانيې د ایمپراتورۍ» تر سرلیک لاندې پر یوه لوی کتاب کار کاوه؛ خو په دې چې د (۱۸۴۲ع) په جنوري کښې له کابل څخه د برتانيي اوردو د پوپنا کېدو وحشتناکو خبرونو د متحدو ایالتو پر مطبوعاتو ژوره اغېزه ښندلې وه، له دې سَوَبه ئې د وخت له غوښتني سره سم «په هِند او افغانستان کښې خاطرې» تر عنوان لاندې د هغه پنډ کتاب لنډه بڼه خپره کړه؛ مگر د برتانيي حکومت د مخالفتو او ډنډورو په وجه ئې د کتاب له خپرولو څخه څه مالي گټه تر لاسه نه کړای سوای. ناچاره ئې و شخصي کوښښو ته لاس واچاوه. هـارلن، پـه هِنـد او افغانستان کښې د کار پر مهال و خپلې خور، مېرې، ته وخت و ناوخت پیسې ور لېږلې، چې په کم کارو بار ئې بندي کي؛ خو خور ئې د پانگوني او مالي چارو استعداد نه لاره؛ ځکه ئې نو د پیسو څه برخه لاسه وتلې وه. هغه په پاته پیسو په چیستر گوڼتی کښې و «کوکر نسوّیل» ته نیژدې دولس سوَه ایکړه فارمي مځکه رانیوله. دې لوی کلیوالي فارم د ده داستوگني پر کور سر بېره، د کرايې کورونه او د کتان د تَولید یوه کارخانه هم لرله، چي ویل کېده په دې برخه کښې لومړنی تَولیدي مرکز و. هارلن هم خپلو وړونو او خوَندو غوندي په مالي چارو کښې د استعداد او لیاقت خاوَند نه و؛ له دې خاطره د ژوَند تر پایه په پورو او قانوني داوو/ دعو کښې غرق و. د امریکا د کورنۍ جگړې (۱۸۶۱ – ۶۵ع) پر مهال ئې د هیواد له جنوب څخه د مالوچو د نه رسېدو په وجه کارخانه واردواره تشه توره او ورپسې پر مخ اوجاړه سوه. وروسته ئې په لوېدیځه امریکا کښې د عسکري ټرانسپورټ د یوې مساعدې وسیلې په حیث، له افغانستان څخه د اوښانو د ور وستلو په مخسد د امریکا د متحدو ایالتو له حکومت سره خبرې و کړې؛ او د دې مهمي ټرانسپورتي پروژې د عملي کولو د پاره ئې د خپلو خـدمتو سپارښـتنه و کـړه. د امریکـا د جنـگ وزارت د اوښانو د واردولو سپارښتنه و منله؛ خو د هارلن پر ځای ئې د «حاجي علي» په نامه د یوه تورکي تبره د گومارني لارښـووَنه و کـړه، چې د اړیتا ور اوښان د افغانستان پر ځای په ارزانه بیه د افریقا له شمال څخه ور ولي.

هارلن، د (۱۸۴۹ع) د مې پر اوله له الیزبیت بیکر سره واده وکئ، چي هغه هم ده غوندي د کوَیکرانو له ډلي څخه وه. په (۱۸۵۲ع) کښې لور و زوکېدله، چي ډېره پر گرانه وه؛ خو په یادښتو کښې له مايني سره د مینې او محبت په اړه څه نه تر ستر گو کیږي؛ حال دا چي په (۱۸۲۰ع) کښې د الیزبیت سوَیم په مینه کښې لیکل سوَئ شعر د مرگ تر شېبې پوري ساتلئ و.

هارلن که څه هم دا گړی په خپل پلرني هیواد کښې د خپلوانو او عزیزانو په منځ کښې مېشت و، خو سره له هغه ئې هم د افغانستان مینه او دوستي له زړه څخه نه ختله. د اوښانو په پروژه کښې د خپلي گومارني تر ناکامه کوښښ وروسته دا وار د امریکا د حکومت په استازیتوب له افغانستان څخه د انگورو د تاکانو او نورو مېوو د نیالو د ور وړلو طرحه وړاندې کړه. د دې مخسد د پاره ئې د اوښانو د پروژې په شان د یوه هراړخیز کتابگوټي په لیکلو لاس پوري کئ.

پـه خواشـینی سـره د افغانسـتان د انگـورو د تاکانو او مېوو د نیالونو د روز ني په اړه لا حکومتي پرېکړه نه وه سوې، چي امریکا د یوې خونړۍ کورنۍ جگړې په لمبو کښې ښکېل سوه. د امریکا د جنوب او و ایالتو د ځینو اختلافو، په تېره بیا د مریتوب د موسسې د پراختیا او پر مختیا په وجه د متحده ایالتو له اتحادیې څخه د وتلو او پـه خپلـو منځـو کښـې د یوه بېل کنفیدرېشن د جوړولو پرېکړه و کړه؛ او پـه دې دوَل د

هغه هیواد د شمال او جنوب د ایالتو تر منځ خوږنړی جنګ شرو سؤ. هارلن، د جنوب د مریي پالؤنکؤ ایالتو پر ضد د جنګېدو په خاطر د یوه بېل غونډ د جوړولؤ غوښتنه وکړه. امریکایي چارواکؤ هم بې پلټني او ګرو پړني اجازه ور کړه. هارلن، د کرنل یا ډګروال په رتبه د خپل جوړ کړي غونډ د قومندانۍ واکي په لاس کښي واخیستې؛ خؤ څه مؤده وروسته د شخصي اختلافو پر اساس د غونډ د ځینؤ منصبدارانؤ له خوا داسي توطیه ور ته جوړه سوه، چي خبره ئې بالاخره تر عسکري محاکمې پؤري و رسېدله. که څه هم د عسکري محکمې حُکم په پای کښي باطل او منسؤخ اعلان سؤ؛ خؤ تر هغه وخت وروسته ئې بیا ناروغۍ په جنګ کښي ملا و نه تړله. د (۱۸۶۲ع) د جولای پر پینځلسمه په داسي حال کښي چي له تبي، اِسهال او پېچ څخه کړېدئ، د وظیفې پر مهال له پښو و لوېدئ. تقریباً یوه میاشت وروسته د (۱۸۶۲ع) د اګست پر نونسمه د کمزورۍ په سوَب د متحدؤ ایالتو له اؤردؤ څخه رخصت سؤ.

هارلن، په خپل کور کښي تر هوسایني او تکړه کېدو وروسته بیر ته په شاوخوا ګرزېدو پیل و کئ. واردواره ئې په «کینټاکي» کښي مځکه رانیوله، چي ژر ئې بیر ته خرڅه کړه. و«ټنسي» او «نشوِّیل» تې تر کډه کېدو دمخه لنډه مؤده په «آلباما» کښي واړوَل. د سؤر پوستؤ (امریکایي هِندیانؤ) د ټولني تر لیدو وروسته ئې و سانفرسیسکو ته مَخه کړه؛ او هؤرې ئې یوه پلا بیا د ډاکټر هارلن نؤم پر ځان کښېښاوه. البته، په هغه ښار کښې هم د اؤږدې استوګي خیال نه لاره، بلکي غوښتل ئې د ځینؤ امریکایي چارواکؤ په کومک د بحر له لاري و پېکینګ ته سفر و کي؛ او په دې ترتیب د چین و ایمپراتور ته د یوه عسکري لارښود په حیث خپل خذمتؤنه وړاندي کي. دا ټول په داسي حال کښي، چي عمر ئې و یو آؤیا کلنۍ ته رسېدلئ ؤ؛ نه ئې په چیني/ چینایي ژبه سر خلاصېدئ؛ او نه ئې په پېکینګ کښي له چا سره څه پېژندګلوي او اشنایي لرله. هغه خؤ څه چي تقریباً یوه لسیۍ/ لسیزه ئې عسکري دریشي هم نه وه اغؤستې؛ او نه د دې کار د پاره د لازمي حربي پوهي څښتن ؤ. سره له دې ټولؤ نیمګړتیاؤؤ او کمزوریېؤ د هارلن روحیه او ځانباوَري د هِندؤګش تر غرو هم لوَړه او پیاوَړې وه؛ خؤ په دې خبر نه ؤ چي لوړه روحیه او ټینګ هوډ ئې د تقدیر له پرېکړؤ سره مقابله نه سي کولای. د (۱۸۷۱ع) د اکټوبر پر یوویشتمه، په داسي حال کښي چي د سانفرنسیسکو ښار په زړه کښې قدم واهه، نابېره تر ټوخېدو وروسته غؤځار سؤ؛ او ځای پر ځای ئې هؤرې ساور کړه. تر مرګ وروسته طبي معایناتؤ ئې جوَته کړه، چي د نري رنځ یا سل په ناروغۍ مړ سوَئ ؤ.

په دې ډوَل، هوډمن او نه ستړی کېدؤنکی هارلن له خپلوانؤ او عزیزانؤ څخه لیري په داسي ځای کښي و خاؤرؤ ته و سپارل سؤ، چي نه ده پېژندئ او نه هغه دی. په سانفرنسیسکو کښي د هارلن د ښخېدو ځای (لَورل هیِّل هدیره) اوس ګرسره له منځه تللې ده. که څه هم مړي ئې و بل ځای ته وړل سوي دي؛ خؤ د هارلن قبر تر دې دمه په هغو کښي نامالؤم دئ.

برتانیي لیکوال او څېړؤنکي، بېن مکینټایر، د هارلن د ژوَند د بېلؤ بېلؤ پړاوو او اړخو د روښانولؤ په مخسد د قدر وړ پلټني او ګروېړني کړي دي؛ ځکه ئې نو لیکنه او څېړنه د هارلن تر خپلي لیکني ډېره پراخه او ژوَره بلل کیږي. مؤږ د افغانستان د معاصر تاریخ د څېړؤنکؤ او پلټؤنکؤ د استفادې په هیله نه یوازي د مکینټایر اؤږده او در نه څېړنه په پښتو ژباړلې ده، بلکي د خپلؤ درنو لوَستؤنکؤ د اسانۍ او مالؤماتؤ په خاطر مؤ پر ترجمه سوي متن سر بېره مفصل تعلیقات، په کتاب کښي د راغلؤ کسانؤ د نؤمو فهرست او ځیني اضافي عکسؤنه هم ور سره مل کړي دي. دغه غنیمت تاریخي اثر له څو کالؤ راهیسي و چاپ ته تیار پروت دئ.

# د کابل پېغله

(۲۴)

( په زړه پوري اسلامي تاریخي ناول )

لیکوال: اسلامي مؤرخ: صادق حسین صدیقي

ژباړن: ډاکټر نثار احمد صمدواصفي/کاناډا

**جنرال نادر خان:** نادر خان په پاریس کې اوسېدی. (پاریس د فرانسې مرکز دئ) ده د ځینو سیاسي مسایلو له امله د افغانستان څخه د تداوي په پلمه هلته هجرت کړی وو نو ځکه په فرانسه کې وو، دی د دې هیواد په عروس البلاد ښار یعنې پاریس کې استوګن وو.

د عیش او ښکلا مریدان د فرانسې پر رنګینیو باندې مین وه، په تفریح ځایونو، پارکونو، بازارونو، هوټلونو او ننداروکې به نازنینو فرانسوي ښځو د دغسې ځوانانو سره دیدنونه او ساعتیرې کاوه.

د اروپا نازکونکو او نخره کونکو نجونو د ختیځ ځوانان او بډایان ډېر خوښول. خصوصاً د پاریس ښکلو به دغسې ځوانان محسور او پر ځانو باندې عاشقان کول، هغوی غوښته چې جنرال نادر خان ته هم په خپلو لیمو کې ځای ورکړي خو هغه د دوی د زلفو بندیوان نه سو.

ده ته د امان الله خان او شور بازار د حضرت ټلګرامونه رسېدلي وه، دی په دې سوچ کې وو، چې څه وکړي او کوم یوه ته ورسي. په دې زړه نازړه توب کې څو ورځې پر تېرې سوې، څو ورځې وروسته د شور بازار د حضرت له خوا یو بل تلګرام هم ورته راورسېد، له دې پرته دی د خبرونو په ذریعه د امان الله خان په استعفا، د عنایت الله خان په ماته او پر کابل باندې د فراري بچه سقاو د واکمنېدو په ټولو پېښو پوره خبر وو. نو فوراً د پاریس څخه روان سو او په کښتۍ کې بمبیي ته ولاړ.

په هندوستان کې د ده د راتګ خبر مخکې لا خپور سوی وو. د هندوستان مسلمانان د افغانستان د بربادۍ او تباهۍ، د بچه سقاو د وحشت او د هغه د ملګرو د ظلم او تعدی د قصو په اورېدلو سره خورا پرېشانه، ناآرامه او مضطرب وه. هغوی پخپله تر استعمار لاندی وه، نو ځکه ئې د افغانانو سره مرسته نسوه کولای، خو زړونه ئې د افغانانو سره د مرستې لپاره بېقراره وه، لاکن مجبوریت بند کړي وه.

کله چې نادر خان بمبیي ته راغی، نو ډېر معزز خلک هوټل ته ورغلل او ورسره وې لیدل، هغوی

جنرال نادر خان وهڅاوه، چې د امان الله خان ملاتړ وکړي، خو نادر خان هغوی ته غوږ او واضح ځواب ورنکړ.

د نادرخان سره د کتونکو ستره برخه هغه کسان وه، چې انګریزي ئې زده وه، همدا خلک ډېر مشوش او مضطرب وه، علماوو یا پیرانو خو نه احساس درلود او نه فکر او غم، هغوی ټول د حلوا او ځیرې غم اخیستي وه.

د «پیسه» په نوم ورځپاڼي مسؤل مدیر حاجي مولوي محبوب عالم هم په بمبیي کي وو، د ده اخبار د اردو تر ټولو پخواني اخبار دئ، هغه ډېر محتاط او متدین شخص وو، د مسلمانانو رښتیا خیر غوښتونکی وو، په خپل زړه کي د اسلام ډېر فکر ورسره وو، دی هم یوه ورځ د نادر خان سره لیدو کتو ته ورغی.

د نادر خان سره ئې د پخوا څخه پېژندل، هغه په ورین تندي د ده هرکلی وکړ، تر سلام او وعلیک وروسته ئې یو بل په غېږ کي ونیول، بیا دواړه پر څوکیو کښېناستل.

محبوب عالم ورته وویل: تاسي به غالباً د خپل هیواد (افغانستان) د ټولو پېښو څخه خبر سوي یاست؟

نادرخان: هو کې! زه د خبرونو په ذریعه خبر یم.

محبوب عالم: د سقاو زوی خو په کابل کي د حماقت طوفان رامنځته کړی دئ.

نادرخان: زما زړه د ده د ظلمونو د داستانونو د اورېدو له امله ډېر غمجن دئ.

محبوب عالم: تاسي هیواد ته د تګ له پاره ډېر ناوخته کړی دئ.

نادرخان: بښکه چي ناوخته کړی مي دی، خو ناروغ وم، که څه هم ما وختي لا غوښته چي هیواد ته ولاړ سم خو ناروغی دا موقع نه راکوله، همدا اوس هم د ناروغی په حالت کي بیرته راځم.

محبوب عالم: الله شافي دي بشپړ روغتیا به در عطا کړي، افغانستان دا وخت ستاسي غوندي مدبر، اغېزمن او زړه ور شخص ته سخت ضرورت لري.

نادرخان: زه ستاسي د مفکورې قدر کوم، همدا اوس د خپل هیواد د خدمت له پاره د اروپا څخه راستون سوی یم.

محبوب عالم: په افغانستان کي همدا اوس د نفاق او شقاق اور بل دئ، د امان الله خان تر ګوښه کېدو وروسته د تخت او تاج ډېر غوښتونکي پیدا سوي دي، تشویش دا دئ، چي کورنی جګړه هیواد برباد نکړي.

نادرخان: زه به کوښښ وکړم چي افغانان د کورنی جګړې له امله د هیواد عزت د خطر سره مخامخ نکړي.

محبوب عالم: خدای دي ستاسي عزایم کامیابه کړي. آیا تاسي خپرونو ته بیان نه ورکوئ؟

نادرخان: که څه هم دې ته اړتیا نسته، خو د هندوستان دردمن ولس په دې حالاتو ډېر ناآرامه دئ، زه تاسي ته یو لیکلی بیان درکوم، تاسي ئې د خپل اخبار په ذریعه خپور کړئ.

محبوب عالم: ښونه به ښه وي که ستاسي دا بیان په اردو ژبه وي.

نادرخان: زما اردو زده ده، که څه هم پوره مي نه ده زده، خو بیا به هم وینا په اردو درکړم.

جنرال نادرخان قلم او مشوانۍ راواخیستل او پر یو کاغذ ئې لیکل پیل کړل، داسې ولیکل:

(د بمبیي څخه د ۱۹۲۹ د فبرورۍ ۲۲)

د کومو غلط فهمیو له امله چې په افغانستان کې نفاق او فساد پیدا سوی دئ، که دغه فساد د ډېرې مودې له پاره دوام ورکړ، نو نه یوازې به د افغانستان پر خپلواکۍ او آزادۍ باندې ناوړه اثر وکړي، بلکې د نړۍ د امنیت له پاره به هم سخت خطر رامنځته کړي، یعنې هغه امنیت چې ټوله نړۍ ئې غوښتونکې ده.

زه د خپلې ناروغۍ سره ـ سره د یو سربښندونکي افغان په حیث دا خپل مسؤلیت او فرض بولم، چې د خپلو ورونو یعنې محمد هاشم خان او شاه ولي خان سره هیواد ته ولاړ سم تر څو د دې مصیبت پر مهال یو څه وکړای سم.

لوی خدای دې افغانستان آزاد او خپلواک لري او موږ ته دې د بېغرضانه خیر رسولو توفیق عطا کړي، چې هیواد سخته اړتیا ورته لري. زه او زما نږدې خپلوان د افغانستان د تخت آرزو نلرو، بلکې زموږ د زړه آرزو دا ده، چې په افغانستان کې بیله څنډه امنیت قایم سي او دا ټوله فساد پای ته ورسېږي.

زه د افغانستان ولس ته خپله صادقانه او بېغرضانه مشوره وړاندې کوم او هغه دا چې په خپل منځ کې اتحاد وکړئ او د خپل هیواد عزت د وړیښن سخت خطر څخه وژغورئ او د لوی خدای څخه وغواړئ، چې مرسته درسره وکړي او د رحم توفیق درکړي، تر څو داسې سلطنت یا اسلامي سوله خوښونکي نظام مستقر کړي، چې د افغانستان د استقلال او امنیت حقیقي ضامن وي.

جنرال نادر خان د بمبیي څخه د مولوي محبوب عالم دغه لیکنه واخیسته او رخصت سو، جنرال نادر خان دا بلـه ورځ لاهور تـه روان سـو، پـر لارې پـه هـر سټېشن کې ګڼ شمېر هندي مسلمانان ورته راوتل او دی ئې متوجه کاوه، چې کله افغانستان ته ولاړ سې نو ژر تر ژره دې فساد او ناامني ختم کړې.

کله چې لاهور ته ورسېد نو ښاغلي ظفر علي خان، مولوي عطاالله شاه بخاري او نورو مهمو علماوو او بزرګانو ورسره وکتل. خلکو ټکټونه وکړل او د هغه ریل په ډبو کې سپاره سول، چې جنرال نادرخان د خپلو دوو ورونو (محمد هاشم خان او شاه ولي خان) سره سفر پکښې کاوه.

ښاغلي ظفر علي خان ورته وویل: زه تاسې ته صرف د دغه عرض کولو له پاره راغلی یم، چې د افغانستان بد امني، کورنۍ جګړې او بربادي د هندوستان مسلمانان خورا زیات مشوش، پرېشانه او ناآرامه کړي دي، په سر تر پایه ټول هندوستان کې د غم او ګروم څپې خپرې دي، موږ مسلمانان یو او افغاني مسلمانان زموږ ورونه دي، یو ورور د بل ورور د مصیبت په لیدو سره قطعاً نه خوشحاله کېږي، موږ سخت ناآرامه او غمجن یو، موږ نه زور لرو او نه وزرونه، نو ځکه د خپلو ورونو هیڅ ډول مرسته نسو کولای، که نن زموږ پښې د غلامۍ په ځنځیرونو تړلې نه وای نو هرومرو به مو د خپلو افغاني ورونو کومک ته دانګلي وای، خو اوس مجبور یو، نو ځکه ستاسو څخه د مرستې هیله کوو، چې تاسې د خدای او رسول په خاطر چې څومره ممکن وي د دې کورنۍ جګړې د ختمولو کوښښ وکړئ.

نادرخان په ډېر غور او توجه سره د ښاغلي ظفر علي خان خبري اورېدلې، کله چي هغه چپ سو نو ده وويل: که زه ستاسي او ستاسي د اخبار «زمیندار» هر ځونه ستاینه وکړم بیا هم لږ ده، تاسي او ستاسي اخبار اسلامي حق ادا کړی دئ او ادا کوي يې، زه د پاریس ځخه صرف د خپل وطن د خدمت په خاطر راروان سوی یم، تاسي به ووینی، چي ځومره ژر به په افغانستان کي د امن او امان دوره شروع سي.

ظفر علي خان: موږ ټوله مسلمانان امیدوار یو، افغانستان ملایانو او پیرانو تباه کړ. زموږ....

نادرخان د ده خبره غوڅه کړه او وې ويل: په دې کي ملایان او پیران هیڅ ملامت نه دي.

ظفر علي خان او ملگروئې په ډېره حیرانتیا سره نادرخان ته وکتل، ظفر علي خان وپوښتل: نو د چا گناه ده؟

نادرخان: آیا تاسي د اخبار لیکونکي په حیث زما ځخه دا سوال کوئ؟

ظفر علي خان: وبخښی، اخبار لیکونکي په غیب نه پوهېږي.

نادرخان: لاکن هغوی د زمانې په پېښو ډېر ښه پوهېږي.

ظفر علي خان: که تاسي د زمیندار اخبار لولی نو در ته معلومه سوې به وي، چي د زمیندار د خبریالانو راپورونه ځه دي.

نادرخان: ما منظم نه دی لوستلی، خو اکثره اخبارونه مي کتلي دي، بخښنه غواړم زه ستاسي د خبریال اړونده راپورونه ټوله رښتیا نه بولم.

ظفر علي خان: نو ستاسو سره به ئې اغلباً علتونه هم موجود وي.

نادرخان: زما په فکر د امان الله خان تلوار او گړندیتوب افغانستان بحران ته بوت.

ظفر علي خان: آیا ستاسي مطلب د اصلاحاتو د سرعت ځخه دئ؟

نادرخان: بلې هو!

ظفر علي خان: مگر هغه خو دا هر ځه بیرته واخیستل.

نادرخان: اصلاحات ئې هغه وخت بېرته واخیستل چي په هیواد کي د ښورښ او بلوا اور لگېدلی وو.

ظفر علي خان: نو دا اور چا بل کړ؟

نادرخان: همدغو اصلاحاتو چي بیرته يې واخیستل.

ظفر علي خان: خبره دا نه ده، تاسي پوهېږی، چي د افغانستان هر مسلمان اوسېدونکی ضرور د کوم پیر یا ملا مرید دئ.

نادرخان: هوکې! ما ته ډېره ښه معلومه ده دوی تم کولای سو.

ظفر علي خان: که ملا او پیر غوښتي وای، چي دا فتنه او اړدوړ يې تم کړی وای، نو آیا نه ئې سوای کولای؟

نادرخان: هوکې! تم کولای ئې سوای.

ظفر علي خان: چي داسي ده نو باید متوجه اوسو چي ملایانو او پیرانو د دې اور د بندولو پر ځای په خپلو لمسونکو ویناوو سره هغه ته نور پیک هم وواهه.

نادرخان : ښايي همداسې به وي.

ظفر علي خان په احساساتي ډول وويل : ښايي نه، بلکې همدغسې هم ده.

نادرخان : لاکن د دې مسؤليت امان الله خان ته هم راجع کيږي.

ظفر علي خان : زه دا منم، لاکن هغه د اصلاحاتو په بيرته اخيستلو او د تخت څخه په گوښه کېدلو سره د خپل اولس او هيواد سره مينه ثابته کړه.

نادرخان : هو ! دا بلکل صحيح ده.

ظفر علي خان : اوس زه ستاسو څخه يوه پوښتنه کوم.

نادرخان : مهرباني وکړئ.

ظفر علي خان : آيا تاسي کابل ته ځئ که کندهار ته؟

نادرخان : په دې ارتباط تر اوسه څه نسم ويلای، کله چې افغانستان ته ننوزم، وبه گورم چې کوم ځای لازم دئ نو هلته به ورسم.

ظفر علي خان : دا خو يقيني ده، چې تاسو به د بچه سقاو مخالفت کوئ.

نادرخان : هو ! يقيناً.

ظفر علي خان : نو دا خو هم يقيني ده چې تاسي يا ستاسو د کورنۍ کوم غړی د افغانستان د تخت آرزو نلري؟

نادرخان : هو ! بالکل يې نلرو، ما په دې ارتباط د «پيسه» اخبار مسؤل مدير مولوي محبوب عالم ته خپل تحريري پيغام د خپرولو له پاره ورکړی دئ.

ظفر علي خان : اوس فقط يوه خبره لا پاته ده.

نادرخان : هغه کومه يوه ده؟

ظفر علي خان : ستاسو په فکر اوس د افغانستان د تخت له پاره کوم شخص موزون دئ؟

نادرخان : د امان الله خان څخه پرته بل هيڅ مناسب شخص نسته، خو يوازې خدای پوهېږي، چې د آينده افغانستان پاچا به څوک وي.

ظفر علي خان : بېشکه، په راتلونکي يوازې خدای پوهېږي.

نادرخان : زه د خپل هيواد او اولس له پاره ډېر نا آرام يم، خدای دې زما هيواد د تباهۍ څخه وساتي.

ظفر علي خان : آمين.

نادرخان : له کله راهيسې، چې مې د افغانستان د تباهۍ حالات لوستلي يا اورېدلي دي، نو آرام مې هم ورسره تللی دئ. زړه مې په وينو ژړېږي.

ظفر علي خان : موږ هندوستانيان هم کټ مټ ستاسو په رقم غمجن يو.

نادرخان : هو ! هر مسلمان بايد په غمجن سي، زه به تر وسه ـ وسه ژر خپل هيواد ته ځان رسوم او خدمت به ئې کوم.

ظفر علي خان : خدای دې تاسي ژر په عافيت سره هيواد ته ورسوي.

همدومره خبرې اترې وسوې، چې ريل گاډی صوبه سرحد ته ورسيده، صوبه سرحد ته په ننوتلو سره ظفر علي خان او ورسره ملگري ئې بيرته راوگرځېدل، جنرال نادرخان افغانستان ته روان سو.

**وروسته يوه شاپيرۍ غوندی نجلۍ**

ژباړه: عبدالظاهر شرک

# د عبدالرحیم هاتف اتوبیوگرافي

**(دوهمه برخه)**

درشدیې په مکتب کې زموږ اکثره معلمین پنجابي الاصله هندوستانیان وه، د دې مکتب څخه دوې خاطرې:

۱) عبدالوهاب خان زموږ د الجبر معلم وو، دی د پروفیسور محمد علي خان مؤرخ کشر ورور وو، اصلاً د لغمان د احمدزو څخه وو، ده زموږ د ټولګی څخه د الجبر امتحان واخست، پارچې یې وکتلې، د نتایجو تر اعلان د مخه یې خپله نتیجه اعلان کړه، وې ویل: په تاسف سره باید ووایم چې بېله یوه شاګرد څخه ستاسي ټول صنف ناکام دئ او هغه شاګرد چې کامیابه سوی دئ دلسو نمرو څخه مستحق دئ آیا ویلای سئ، چې دا شاګرد به څوک وي؟ چا ورته وویل چې نسو ویلای، په آخر کې عبدالوهاب خان زما نوم واخیستی او وې ویل چې عبدالرحیم ټوله سوالونه حل کړي دي، مګر زه په دې خاطر ده ته لس نمرې نه سم ورکولای، چې ټوله صنف ناکامه دئ، ده ته پنځه نمرې ورکوم یا نوی امتحان ورڅخه اخلم. اوس دي ګران لوستونکي د دې ښوونکي په باب قضاوت وکړي، ما د مخه ولیکل چې زموږ اکثره معلمان پنجابیان وه، حتی د سپورټ د معلم په شمول هغه یو تقاعد سوی عسکر وو، چې وموږ ته ئې (Left- Right) قواعد را زده کول.

په دې ښوونځی کې زموږ د دنیات معلم احمد جان اخندزاده د شاه جامع او د عیدګاه خطیب وو، چې د پخوا نیو معلمانو لکه محمد شریف جانان او مشاق اختر محمد خان د جملې څخه وو، زموږ د رشیدیې مکتب د نهم صنف تر امتحانو وروسته زموږ د صنف ټول شاګردان یې د بغرا د ویالې پروژې ته ورکړو، چې د جاپاني انجنرانو تر لاس لاندې ئې کار کاوه.

مګر محمد عمر نعیمي او وروسته سردار محمدصدیق او حبیب الله اخندزاده کابل ته ولاړل، بېله دې چې دلیلیې سهولت موجود وي په حبیبیه مکتب کي ئې ځانونه شامل کړل، چې مدیر ئې بیا هم غلام حیدر خان عدالت وو، د دې وروسته زه د پلار سره کابل ته ولاړم او غلام حیدر خان عدالت ته ئې ور وسپارلم، پلار مې بېله دې چې زما د شمولیت اطمینان حاصل کې مسافر سو او دا سفر ئې پوره څلرویشت کاله اوږد سو، زه په دې لیکنه کې د پلار په باب لږ رغبدلی یم، یو چې زه ئې مکتب ته شاملولم او بل چې تر حبیبي مکتب پوري راسره ملګری وو.

په اماني عصر کې زما د پلار شغل معلمي وه، کله چې په سقوي اړو دوړ کې مکتبونه وتړل سول، پلار مې بېکاره پاته سو، د ده د پلار قسمت هم داسي سو، چې د اماني عصر وروسته ډېر نه سو پاته، د حج څخه د راتګ پر مهال په کراچي کې وفات سو او هورې ښخ سو، زما د نیکه هغه پیسې، چې حاجي عطامحمد پوپلزي ته ئې ایښې وې، پلار مې هغه پیسې را واخیستې بېله کمې تجارتي سابقې ئې تجارت شروع

کړ، د ده تجارت یو پاشلی تجارت وو، پاشلی تجارت چي هغه هم د نورو په تقلید وي چنداني گټور نه وي.

د هغې زمانې په باب چي زه رغېږم مرحوم محمد موسی خان د کندهار یو مشهور تجار وو، ده د دربار سره هم ارتباط درلودی او د هغه ځایه څخه هم حمایه کېدی. زما پلار چي یو باسواده سړئ وو او د پلار ښه نوم هم ورپاته وو، د کندهار د منورینو څخه شمېرل کېدی، د موسی خان ډېر د علاقې وړ وو، کله چي موسی خان خپل لومړی تجارتي شرکت د غلام یحیی خان په سرای کي د (محمد موسی وشرکاء) په نامه پرانیستی، مرحوم موسی خان چي د دې شرکت رئیس وو، زما پلار مولوی محمد ویس خان، حاجي نصرالدين خان بټه خیل او محمد نور خان توخی هم پدې شرکت کي سهیم او شریکان سول، وروسته موسی خان د پښتون شرکت اساس کېښېښووی او (محمد موسی و شرکاء) شرکت په دې کي گډ سو. باید وویل سي چي د هغې زمانې د تجارت اساس پر انحصار اینبودل سوی وو او پښتون شرکت د هند سره د وچې مېوې یو قسم انحصار خپل کړی وو.

څرنگه چي زما پلار تر کور په سفر ډېر خوښ وو، نو د دغه نژدې چمن څخه هم په میاشتو کور ته نه راتلی. زما د پلار دوهم خوی داوو، چي هیڅکله ئې کار نه تصفیه کاوه او نه ئې پای ته رساوه، چي زه ئې څو مثالونه وړاندي کوم:

۱ـ د پښتون شرکت د لومړیو سهیم لرونکو څخه وو، چي پیسې ئې تحویل کړي وې، مگر نه ئې د دې سهمونو سند اخیستی وو او نه ئې د سهمونو گټه. بیا ما د مرحوم محمد موسی خان او حاجي عطاجان تر مړیني څو کاله وروسته د احمد موسی د (موسی خان د زوی) څخه لاس ته راوړل او بیا مي دا سهمونه پر ښاغلي اغا محمد رحماني خرڅ کړل.

۲ـ میرزا محمد عظیم خان دي خدای وبخښي په قلچ اباد کي ئې زما د پلار لپاره مځکه رانیول او دا مځکه د ده د باغ څنگته وه او د انگرو باغ ئې ځني جوړ کړ، څرنگه چي زما پلار حاضر نه وو نو قباله ئې په خپل نامه کړل، مگر د قبالی پر شائې ولیکل چي دا مځکه اصلا په محمد ویس او محمد میر اړه لري.

تول په خپل طبعي مرگ مړه سول، زما داکا حاجي محمد میر تر مړیني وروسته ما لومړی د ده د زوی ملا عبدالغني، بیا مي د اکا د کونډې وروسته د اکا د لور فاطمې سره حسا بونه تصفیه کړل او بلا خره زما د پلار تر مړیني وروسته چي موږ وارثینو په خپل منځ کي وېش کاوه، د دې باغ کار مو داسي تصفیه کړ:

الف: د مرحوم محمدعظیم خان حصر وراثت مو د دوی د ورثې په موافقه جوړ کی (محمد عظیم خان زما د پلار ماما وو.)

ب: د نوموړي باغ یوه برخه مو د محمد عظیم خان دورثې په موافقه زما پر خور (خدیجې) او بله برخه مي زما پر بلې خور (عایشې) خرڅه کړل او موضوع خلاصه سول.

۳: د نساجي فابریکو د تاسیس لپاره یو وخت د افغانستان په گمرکاتو کي پر گمرکي محصول سر بېره د نساجي د سهم په نامه یوه اندازه اضافه پیسې هم اخیستل کېدې له دې بابته ئې د نساجي سهمونه ورکول، زما د پلار سهمونه دا غسي معطل پاته وه کله چي زه تجار سوم لستوني مي را ونغښتل او دا کمبودی مي رفعه کړې.

۴: په نوي ښار کي زموږ کور زما پلار د محمد اکبر خان (مدیر خارجه) څخه رانیوی، په دې شرط چي د ښاروالۍ قسطونه به پر خپل وخت و ښاروالۍ ته تحویلوي او تر قیمت اضافه پیسې و خر څوونکي

(بایع) ته ورکوي او قباله به د ټولو حقوقو تر اداء کولو وروسته ورکول کېږي. هر کال به د ښاروالۍ څخه حوالې راتلې، چې پیسي تحویل کړی موږ نه پوهېدو چې دچشي پیسې غواړي، پسله ډېره وخته پوه سوم چې دچشي پیسې غواړي بیامي دښاروالۍ ټول حقوق اداء کړ.

زما پلار په تجارت کې هم ډېر خوش باوره وو، په لکو پیسې به خلکو په دې خاطر ورڅخه یوورې، چې بیرته به د ده حواله اجراء کوي، مگر هغو به پر هغه مخ برباد کړې، چې مثال ئې محمد انعام د محمد اکرم یوسفزي زوی د پېښور د سوابۍ او سېدونکی وو، دا سړی ئې په خپل ټول عمر نه وو لیدلی یو لک شل زره کلداري ئې ده ته ور استولي وې، چې بیرته باید حواله پر وکړي، مگر هغه په کراچۍ کې د برق د سامان دوکان او کور په رانیولي وه.

پر دغه مثال به ئې بس کم.

آیا دی په دغه اندازه ساده لوحه وو؟ هیڅکله نه، دی په پښتو، فارسي، اوردو او انگلیسي ډېر ښه پو هېدی، چې په هغه زمانه کې بل څوک د ده اندازې ته نه وو رسېدلی، خپله شاعر او لیکوال وو، د مثنوي په سلهاوو شعرونه ئې په یاد وه، په ریاضي کې ئې مخصوص استعداد درلودی، ضرب ضرباني کې ئې تر ۲۰/۲۰ په یاد وه، اعشاره او عام کسرونه ئې د لوړ څخه ضرب او تقسیمول، مگر دایې خوښه وه، چې سرمایه دار او مشهور سي او د دې کار لپاره به ئې کله ـ کله په غیر لازمي کارو هم لاس واهه.

تر دغه چې په کور کې وي د کور مسؤلیت ور تر غاړه وي، سفر ئې ډېر خوښ وو، ډېر میلمه پاله او خوش اخلاقه وو، دوستان به ئې پر راټول وه او د دوی د خوش طبعې څخه به ئې خوند اخیستی، دی د مکلفو او خوندورو غذاوو شوقي وو، د مشاعرو د اورېدلو شوق ئې هم درلود، که به د ده د اوسېدلو د ځای څخه اتیا کلو متره لیري وه، ده حتمي ځان ور رساوه، که به ټکټ گران هم وو، باک ئې نه په کاوه، دی په شعر پو هېدی او د هند مشهور شاعران یې پېژندل.

د ژوند په اخره کې د شکري او زړه په ناروغۍ اخته سو، زما او د دوستانو په ویلو او ټینگار هیواد ته په داسي حال کې راغلی، چې نه ئې سوای کولای د دې راتگ څخه خوند واخلې.

د لو مړي کال تر اعتبار وروسته د ده پر پاسپورټ ۲۹ د تهدید ټکټان وهل سوي وه، دی دي خدای جل جلاله و بخښي، مگر د اولاد په تربیه، د کورنۍ په اداره او د تجارت په کنترول کې بریالی نه وو.

د خپل پلار په پېژندلو لگیا سوم او خپل ځان مې هېر سو خپل ځان ته راگرځم.

د حبیبیې له مکتب څخه په داسي حال کې فارغه سومه، چې د ادبیاتو پو هنځی د جوړېدو په حال کې وو او دا پو هنځی د پښتو ادبیاتو په نامه تائسیس سوی وو، په دې پو هنځي کې د کابل د څلورو پښتو ژبانو (که ئې غو ښتل که ئې نه غوښتل) دلته شامل کړل. مگر یوازي دیارلس نفره په لاس ورغلل، د دې جملې څخه اول دوه نفره حاضر نه سول، هغه نور کال په کال یا د تحصیل لپاره خارج ته تلل او یا به ئې تحصیل پر ېښوول، چې ۱۳۲۷ کال فقط موږ درې نفره (زه مرحوم عتیق الله پـژواک او مرحوم استاد عبدلاحدیاري) د ادبیاتو څخه فارغ سوو، د ادبیاتو د پو هنځی د تائسیس سره د پوهنتون د ودانۍ د بنسټ ډبره هم ایښوول سوې وه، چې د طیب، حقوقو او ساینس پو هنځیاني هم جوړي سوې، هر څوک وه خپل شغل ته وگمارل سول، زې په کندهار کې د میر ویس خان لیسې مرستیال مقرر کړم، چې په هغه وخت کې ئې مدیر نه درلودی، ماتقریباً دوه کاله دې

وظیفي ته ادامه ورکړه، په دوهم کال عبدالرحیم خان دکندهار دپوهني د رئیس په حیث راولېږل سو، عبدالرحیم خان مشهورسړی وو، یو وخت په کابل کي د نجات او استقلال ښوونځیو مدیر وو، د نادر خان تر ترور وروسته د بعضي زده کوونکو وژل په اوړده او شاقه بند محکمولو کي د عبدالرحیم خان د راپور ورکولو ونډه د خلکو په خولو کي وه، په هغه ورځو کي عبدالغني خان قلعه بیگی د کندهار والي وو، چي په هیڅ صورت سره ئې ترعبدالرحیم خان ښه شهرت نه درلود، غالباً به د ویښو زلمیانو د کوټلو لپاره داسي اشخاص گمارل کېدل او دا غسي هم وسول، چي د ویښو زلمیانو د رهبری هیئات په هغه وخت کي د کابل، بغلان او کندهار په محبسونو کي په اوږدو بندونو محکوم سول.

زما مناسبات د عبدالرحیم خان سره غیر عادي سول، خصوصاً هغه وخت چي ما د ده دامر د عملي کولو څخه سر پېچي وکړل.

نقل داسي وو: د میرویس لیسې شاگردانو په خپل شخصي مصرف د سپورټ لباس ځانونو ته اماده کړی وو، په هغه وخت کي د سپورټ د معلیم صاحب په نوښت د سپورټ ننداره د ښار په یو مکتب کي په نظر کي نیول سوې وه او د میرویس لیسې دسپورټ لباس ئې په نظر کي وو، چي دوی باید استفاده ځني وکړي.

د دې لباس د غوښتلو لپاره ئې د پوهني د رئیس امر ورته راوړ د ده پر امر ما ورته ولیکل هغه لباس چي تاسي غوښتی دئ دا د میرویس لیسې د شاگردانو په شخصي لگښت تهیه سوی دئ، د دې څخه باید یوازي د دې لیسې شاگردان استفاده وکړي که داسي نه وي نو په امانت کي به خیانت وي د سپورټ معلم دا نویشته د معارف رئیس ته ور وړل، رئیس معارف دوهم وار امر وکړ چي د لوړو مقاماتو په امر کي خنډ او بهانه ونه سي.

څرنگه چي ما د اوږده ماموریت سابقه نه درلودل، د ده د دې لنډ امر په مقابل کي مي ولیکل: یوازي د اسماني اوامرو منل بېله قیده او شرطه راغلي، د مقاماتو د امر منل تر هغه ځایه باید ومنل سي، چي مسئولیت نه وي پکښې. د پوهني مدیر دا لیکني او غوښتني عبدالغني خان ته ور وړې او هغه زه په شفاهي امر پنځلس ورځي د ښار په یو لومړني ښوونځي کي بندي کړم.

د میرویس لیسې شاگردانو او د احمدشاه بابا دلیسې بعضو شاگردانو مظاهره وکړل، ځوانانو او روشن فکرانو شپه او ورځ په هغه ښوونځي کي سره یو ځای وه، څرنگه چي د مکتب د رخصتۍ ورځي وې نو د شاگردانو په دې کار کي کم ممانعت موجود نه وو.

دا دوې هفتې په خیر تیري سوې او زه درې میاشتي بېکاره پاته سوم، بلاخره ئې زه مشورتي شوراته ور وغوښتلم (مشورتي شورا یو مجلس وو، چي دلومړی درجې مامورین د مختلفو شعبو او هري ولسوالۍ څخه یو – یو نماینده پکښې وو. البته د نن ورځي په شکل د خلکو منتخب نمایندگان نه وه، مگر د مامورینو پر فیصلو به ئې لاسلیک کاوه)، زما په یاد دي، چي د پنجوائې نماینده سلطان محمد خان راته وویل: « نن مجلس ستا د ایسته کېدو په باره کي دئ، زه دوستانه در ته وایم چي ته معافي وغواړه او موږ به هم وساطت وکړو څو ستا ایسته کېدل مطرح نه سي» ما ورته وویل چي وکیل صاحب زه د څشي معافي وغواړم ته په موضوع خبر یې؟ وکیل صاحب راته وویل چي دوستانه مشهوره مي در کړل نور ستا اختیار دئ، ما ورته وویل چي تاسي د خلکو دحقوقو مدافع یاست؟

راتـه وې ویـل چـې اوس هـم پـر مخکنـي نظـر اصـرار کوې؟.

مجلس جوړ سو عبدالرحیم خان زما پر ایسته کېدو ټینګار کاوه د ده نظر عبدالغني خان قبول نه کی، شاید عبدالرحیم خان یې د ځان لپاره یو خار بلی، زما په باره کې هیڅ تصمیم ونه نیول سو، پسله یو څه وخته عبدالرحیم خان د هرات د نائب الحکمه په حیث تبدیل سو او زه د احمد شاه بابا لیسې ته د ښوونکي په حیث په کښته رتبه مقرر سوم.

د احمدشاه بابا په لیسه کي به کله ـ کله مظاهره وسوله، دوی بـه زمـا لاس پـه دې مظاهره کـي دخیـل باله، د بلي خوا د کنـدهار ولایـت تصفیه لا سر ته نـه وه رسېدلې، یو هیئت د حقیقت مو ندلو په خاطر قندهار تـه راولېږل سو، چـي د دغـو کسـانو څخـه عبـارت وو: ډاکټر محمد یوسف خان د هغـه وخـت د پوهنـي وزارت معین، ښاغلی محمـد هاشـم میونـد وال او عبدالمجیـد خان بکټریولوژیست، وروسته د پوهنتـون رئـیس دوی د ویښـو زلمیـانو پـه بـاره کـي د هـري خـوا پوښـتني او تحقیق کړی وو، پـه اخره کـي ئـې هغـه محصلین چـي د پوهنتون څخه د رخصتېدو په خاطر خپلو کورونو تـه راغلـي وه دمعـارف د ادارو او مسـئولینو سـره ئـې یـوه غونډه جوړه کړی وه، د معارف د اوضاع او د هغـه د حـل لاري په باره کي ئې سوالونه مطرح کړل.

د پوهنتون شاګردانو ماتـه مخ را واړاوه او راتـه وې وویل: څرنګه چي ته زموږ پخوانی محصیل ئې نو ښـه داده چي ته جوابونه ووایې، که څه هم دا تصمیم مـا نـه وو نیولی، مګر مجبوره سوم او ومـي ویـل: اداري فساد هر ځای بد بلل سوی دئ، خصوصاً پـه هغـه ځـای کـي چي مفسـدین هـره ورځ د هغـو کسـانو سـره، چـي دوی بده استفاده ځني کوي ملاقات او لیـدني کـوي، اداري فسـاد پـه معـارف کـي نـاروادئ، مګـر د دوی مـامورین وفساد ته مجبوره کیږي، مثلا هغـه معـاش چـي پسـله شپاړس کالو تحصیله دوی ته ورکول کیږي هغه یوازي د دوی دکور د مصارفو نه بس کیږي، نو دوی او کور نې ئې څه وګړي په داسي حال کي چي د سختي ولږې په حال کي د حرامو غوښو څخه استفاده هـم تـر یـوه حده روا ده، باید دې مسئلې تـه پاملرنـه وسـي چـي د فساد مخه ونیول سي.

مشاق صاحب محمد اسماعیل خان پنجشېری چي واقعاً یو پرهېز ګاره ادیب، عالم او خطاط سړی وو، ناره یې کړل او وې ویل چي ښاغلی هاتف! فساد عام نه دئ. مـا ورتـه وویـل محتـرم اسـتاده ستاسـي سـره زه موافق یم چي استثناآت سته او عمـو مـي نـه دئ، مګـر فساد ډېر سته.

هغـه هیئـت چـي د کابلـه را غلـی وو، زمـا څخـه پوښتنه وکړل چي په اوسني حالت کي د دې چاره څه ده؟ مـا ورتـه وویـل چـي کادرونـه د مرکـز څخـه مـه را لیږئ، چي عوض ئې په ولا یتو کي پیداسـي ځکه دوي غالباً یو سر پنا لري.

زما د دې خبري څخه دوی داسي و فهمول چي زه هم د ویښ زلمیانو د روزونکو څخه یم، ځکـه د ویښـو زلمیانو دا غوښتنه وه چي د کابل اداري انحصار ختم سي او په سیسټم کي دې ولا یتو ته برخه ورکـول سـي، نـو ځکـه زه چـي اصلاً ویښ زلمـی نـه وم او مرحـوم نوراحمد شاکر چي ویښ زلمی وو، د هغه څه پر خلاف چي ما یې غوښـتنه کړې وه کابـل تـه ولېږلـو. کابـل تـه ولاړو. یو څو عمر شعبه پر شعبه وګر ځېدلو څـو آخـري موږ دواړه د معلم په صفت حربیه مکتب ته په (مهتاب کـلا) کـي معرفـي کـړو. لـومړی ورځ موقـع رانـه کـول سول، په دې سبا تدریسي مدیر په ټینګار راته وویل که دې مکتب ته راتلې اینده دا شیان مـه درسـره راوړه. مـا ورتـه وویـل چـي دا د انـیس اخبـار دئ، چـي دولـت د چاپولو امر ور کړی دئ، ده وویل: هر شی چي وي درته ومي ویل.

نور بیا...

# د اطلاعات او فرهنگ ریاست د فعالیتونو دوې میاشتنی راپور

جوزا:

- اطلاعات او فرهنگ ریاست په لومړي ځل د پښتو ترۍ والـه ورځ ولمانځله. پـه لمانځغونـډه کـي د پښتـو پـر اهمیت، د پښتو په وړاندي پرتو خنډونو او د پښتو پر تقویې په زړه پوري بحث وسو. اطلاعات او فرهنګ ریاست ژمنه وکړه چي د پښتو د تقویې لپاره به ځانګړې کمېټه جوړوي او د هغې کمېټې مسئولیت به دا وي چي له بېلا بېلو لارو پښتو ته کار وکړي.
- اطلاعات او فرهنګ ریاست د ښکلو هنرونو ټولني د غړي ښاغلي احمد ولي عسکرزي په همکارۍ د جګړې پر ضد د ماډرن آرټ یو نندارتون جوړ کړ چي د رسنیو د ډېري توجه وړ وګرځېد. په دې نندارتون کي د هیواد د رواني جګړې ټول اړخونه روښانه سوي ول او دا د جګړې پر ضد د ذهنیت سازۍ یو ښه نوښت وو.
- اطلاعات او فرهنګ ریاست طلوع افغان ورځپاڼه د چاپې، مالي او کیفي ملحوظاتو له امله په اوونیزه بدله کړه چي اوس یې کاغذ ښه سو، مخکي ۴ مخه وه خو اوس ۸ مخه سوه، د سر او پاې مخونه یې رنګه سول او په محتوایي لحاظ ډېره ښه سوه.
- د کندهار مجلې د ۱۳۹۶ کال وروستۍ ګڼه چاپ سوه. د وزارت مقام تر څنګ ټولو ولایاتو او په کندهار کي مهمو ادارو ته توزیع سوه.
- اطلاعات او فرهنګ ریاست د ځوانانو رضاکار فدراسیون په همکارۍ په ریاست کي د هیواد وروستیو پېښو د قربانیانو او اوربند په پار د قرآنکریم ختم وکړ او سلګونه ځوانانو ته ئې روژه مات برابر کړ او له ارګ څخه راغلي پلاوي د انتخاباتو په باب خبري وکړې.
- اطلاعات او فرهنګ ریاست او ملي راډیو-ټلویزیون په ګډه د اختر لپاره ځانګړې مشاعره جوړه او ثبت کړه. دې مشاعرې ته چي په اطلاعات او فرهنګ ریاست کي جوړه سوې وه، امکانات د اطلاعات او فرهنګ ریاست او ملي راډیو-ټلویزیون له خوا چمتو سوي ول.
- اطلاعات او فرهنګ ریاست د ښځینه لیکوالي آغلي زینب فایز د نوي چپور سوي اثر «د ښځو د میاشتني عادت په اړه شرعي او علمي تحقیق» د مخکتني غونډه جوړه کړه چي نه یوازي د کتاب پر محتوا خبري وسوې، بلکي د ښځینه لیکوالو د فرهنګي فعالیت پر اهمیت هم ښه بحث وسو.
- اطلاعات او فرهنګ ریاست د خبریالانو د جرګګۍ میاشتنۍ غونډه جوړه کړه چي خبریالانو ته د ولایت مقام د ویاند پر معرفي کېدو سربېره د رسنیو پر کیفیت، اطلاعاتو ته پر لاسرسي او د خبریالانو پر تهدید بحث پکښي وسو او د اطلاعات او فرهنګ ریاست له خوا جوړه سوې د اعلاناتو نرخنامه غونډې ته وړاندي سوه او د ریاست له خوا ژمنه وسوه چي د مطبوعاتي ژبې د اصلاح لپاره به یو ورکشاپ جوړ کړي. دا راز به د ریاست له خوا د هرې میاشتنۍ غونډې مینوټ په مکتوبي ډول محلي رسنیو ته لېږل کیږي.
- اطلاعات او فرهنګ ریاست د ولایت مقام په سپارښتنه د کوچني اختر لپاره مربوطه چاري سر ته ورسولې او د اوربند د ملاتړ په باب یې په ښار کي بیلبورډونه ونښلول.
- اطلاعات او فرهنګ ریاست د ځوانانو رضاکار فدراسیون په همکارۍ د روژې په مناسبت له ۱۵۰ کورنیو ره د خوراکي او غیر خوراکي توکو مرسته وکړه.
- د اطلاعات او فرهنګ ریاست اړوند د ځوانانو رضاکار فدراسیون له لوري نادري روغتون ته ۲۰ مېرمني د تداوۍ لپاره معرفي سوې چي په وړیا توګه یې علاج کیږي.
- د اطلاعات او فرهنګ ریاست ۲۰ تنو کارکوونکو ته د امریکا د سفارت له خوا په انلاین شکل په لینکن ښوونیز مرکز کي د تاریخي ابدو په باب معلوماتي پریزینټېشن وړاندي سو.

**سرطان:**

- اطلاعات او فرهنګ رياست خپل دوه تنه (نارينه او ښځينه) کارکوونکي د يونيسف په مرسته باميان ولايت ته د عکاسۍ په برخه کي د يوې اوونۍ روزنيز پروګرام لپاره ولېږل چي هلته يې د عکاسۍ په برخه کي زدکړه وکړه.
- کندهار ولايت مقام د اطلاعات او فرهنګ رياست په غوښتنه له رياست سره د ۴ لپټاپونو، ۲ کېمرو، ۳ موبايلونو، ۵ دفتري مېزونو، ۱۵ څوکيو، يو پوډيم (سټېج)، ۳ UPS، ۴ CPU، ۳ مونيټرانو، يو انټرنيټ سويچ او يوه يخچال مرسته وکړه.
- اطلاعات او فرهنګ رياست په لومړي ځل پخپلو امکاناتو د سيمه ييزو راډيوګانو د کيفيت ښه کولو او ژبې د اصلاح په موخه ۳ ورځنی روزنيز ورکشاپ جوړ کړ. چي د کندهار د اکثريت رسنيو ښځينه او نارينه کارکوونکو ګډون پکي کړی وو.
- اطلاعات او فرهنګ رياست او يونيسف په ګډه د ۱۹ کلنو نارينه او ښځينه خوانانو ټولنه جوړه کړه. د ټولني د مشر تابه لپاره ټاکني وسوې او کلني پلان جوړ سو. چي رضاکارانه فعاليتونه به کوي.
- اطلاعات او فرهنګ رياست په لومړي ځل د طلوع افغان جريدې ۹۷يمه يا ۱۰۰ قمري کليزه ولمانځله. په غونډه کي د طلوع افغان پر تاريخي مسير، محتوا او اوسني حالت مقالې وړاندي سوې.
- د اطلاعات او فرهنګ رئيس د کېبلي شبکو له مسئولينو سره مسلسلي ناستي وکړې او په کېبل کي يې د مکررو چينلونو پر ځای معلوماتي، روزنيز او ګټور چينلونه وراضافه کړل.
- اطلاعات او فرهنګ رياست د ليکوال او ژباړن ډاکټر نثار احمد صمد د اثارو او فکر د پېژندني غونډه جوړه کړې وه، چي د هغه پر ژباړو، تاريخي، سياسي او ديني اثارو مقالې وړاندي سوې او د کندهار پوهنتون له خوا ايوارډ ورکول سو.
- اطلاعات او فرهنګ رياست د کندهار له هنرمندانو (سندرغاړو) سره ناسته وکړه او جدي سپارښتنه يې ورته وکړه چي په خلاصه فضاء او پارکونو کي به په لوړ ږغ موسيقي نه ږغوي چي خلک ورسره په تکليف نه سي، د غيرمسلکي ماشومانو د سندرو مخنيوی به کوي، د موسيقي اداب او اخلاق به مراعاتوي او د کندهار په استازيتوب چي نورو ولاياتو ته ځي بايد د اطلاعات او فرهنګ رياست اجازه واخلي.
- کندهار ولايت مقام او اطلاعات او فرهنګ رياست د خبريالانو د مصئونيت کمېټې غونډه وکړه چي معلوماتو ته پر لاسرسي او تهديدونو خبري وسوې.
- اطلاعات او فرهنګ رياست د لوی احمدشاه بابا د حرم سرای او ميرهزار جامع د پروژو د کتني لپاره له اطلاعات او فرهنګ او ښارسازۍ وزارتونو څخه له راغلي پلاوي سره هر اړخيزه همکاري وکړه.
- د اطلاعات او فرهنګ رياست او ولايت مقام په رياست کي د ځوانانو د غوښتنو او کارموندني په موخه غونډه جوړه کړې وه چي د زابل، روزګان او هلمند او سېدونکو ګډون کړی وو.
- په اطلاعات او فرهنګ رياست کي د ځوانانو له خوا د دادخواهۍ غونډه جوړه سوه چي ګڼ شمېر ځوانانو ګډون پکي کړی وو.
- اطلاعات او فرهنګ رياست د کندهار د پياوړي مؤرخ او کابل پوهنتون استاد علي محمد زهما فاتحه واخيسته او د قرآنکريم ختم يې پسي وکړ.
- اطلاعات او فرهنګ رياست له زلال خصوصي ښوونيز مرکز سره يو هوکړه ليک لاسليک کړ، چي له مخي به يې ۱۲۰ غريبو زدکوونکو ته په وړيا ډول او ۵۰٪ تخفيف سره زدکړې ورکول کيږي.
- د «ويښتيا» په لړ کي ښاغلي محمد ناصر نېکزاد د «علم الفلک/Astronomy» په اړه دوه پر له پسې لکچرونه وړاندي کړل.

# Kandahar

Bi-Monthly Magazine of Kandahar Information and Culture Department




کندهار میوزیم؛ چي په حمل کي یې د اثارو پیژندنه او افتتاح وسوه.